


شماره
مضمون
صفحه

Ÿ

حمد او ثناء ده هغه ذات لره چې دا ټول مخلوقات يې پيدا کړي دي او د دوی د ژوندي پاتې کېدلو لپاره يې وخت ټاکلی دی او د ټولې دنيا لپاره يې يوه نېټه تعين کړېده چې په هغه نېټه به زوال کوي خو دا چې دا نېټه يعنې قيامت به څه وخت راځي دا هغه خبره ده چې يوازې الله ته يې علم شته او بل هېڅوک ورڅخه خبر نه دي خو ددې لپاره چې هر وخت د خلکو لپاره د هدايت سبب شي څه علامې يې ورته پيدا کړي دي او هغه يې انسانانو ته په قرآن کريم کې او د رسول الله ﷺ په واسطه بيان کړي دي ددېنه په مخکني کتاب (حتمي سفر د قيامت وړې نښې) کې دا خبره تېره شوه چې د قيامت علامې په دوه ډوله دي يو ډول هغه علامې دي چې هغه وړې دي چې ددېنه په مخکني کتاب کې مو وربانديې خپل بحث را څرخولی وو او بل ډول لويې نښې دي د هغې په اړه دادي اوس ستاسې مخې ته د علمي بحرونو څخه ملغلرې را ټولوم او خپل ټول بحث د رسول الله ﷺ په يو حديث را څرخوم چې حضرت حذيفة بن اسيد الغفاري فرمايي : مونږ د رسول الله ﷺ د کوټې په سيوري کې ناست وو خبرې مو کولې قيامت مو يادولو اوازونه مو پورته شول رسول الله ﷺ وفرمايل : **مَا تَذَاكَرُونَ؟ قَالُوا: نَذْكُرُ السَّاعَةَ. قَالَ: إِنَّهَا لَنْ تَقُومَ حَتَّى تَرَوْنَ قَبْلَهَا عَشْرَ آيَاتٍ فَذَكَرَ الدُّخَانَ وَالدَّجَّالَ وَالدَّابَّةَ وَطُلُوعَ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا وَنُزُولَ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيَأَجُوجَ وَمَأْجُوجَ وَثَلَاثَةَ خُسُوفٍ خَسْفٌ بِالْمَشْرِقِ وَخَسْفٌ بِالْمَغْرِبِ وَخَسْفٌ بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ، وَآخِرُ ذَلِكَ نَارٌ تَخْرُجُ مِنْ الْيَمَنِ تَطْرُدُ النَّاسَ إِلَى مَحْشَرِهِمْ**[1] .

---

[1] رواه الامام احمد

ترجمة : د څه خبرې کوئ؟ صحابه وو ورته وویل : قیامت یادوو رسول الله ﷺ وفرمایل : هغه تر هغه وخت نه راځي ترڅو تاسې لس نښې وویني لوګی ، دجال، دابه ، لمر له لمر لوېده څخه را پورته کېدل ، د حضرت عیسی بن مریم را وتل ، یاجوج او ماجوج، دری خسفونه (په زمکه ننوتل) یو خسف د مدینې منورې په مشرق لوري کې او یو خسف د مغرب په لوري کې او یو خسف په جزیره عرب کې او ددې په آخر کې به یو اور وي چې له یمن څخه به را پورته شي او خلک به محشر ته ور ټول کړي .

سره ددې چې پدې حدیث کې د حضرت مهدي راوتل نه دي یاد شوي خو د دجال په خبرو کې اکثر خبرې د حضرت مهدي تر واقعو پورې تړلې دي ځکه ما هغه په وړو نښو کې یاد نه کړو او دلته یې د مقدمې په ډول ورته اېږدم .

## حضرت مهدي

د قیامت یوه نښه داده چې د مهدي په نوم به یو کس را ښکاره شي امیر به شي پدې اړه زیات احادیث او اثار راغلي دي چې ځینې به یې ستاسې په مخ کې کېږدم مخکې تر ېنه د مهدي د نښو او تعریف په اړه یو څو بحثونه ورته اېږدم :

## نوم ، لقب او نسب یې

نوم به یې محمد او د پلار نوم به یې عبد الله وي د حضرت حسن په اولاده کې به راځي د نوم او د پلار نوم یې هم په روایاتو کې یاد کړل شوی دی حضرت عبد الله بن مسعود فرمایي رسول الله فرمایل : **لو لم يبق من الدنيا إلا يوم واحد لطول الله ذلك اليوم حتى**

**يبعث الله فيه رجلا مني -أو من أهل بيتي- يواطئ اسمه اسمي، واسم أبيه اسم أبي، يملأ الأرض قسطاً وعدلاً كما ملئت ظلماً وجوراً.** [1]

ترجمة : که چېرته په دنیا کې صرف یوه ورځ پاتې شي نو هغه یوه ورځ به الله اوږده کړي تردې چې یو کس الله را ولیږي چې زما نه به وي او یا یې وویل چې زما له اهل بیت نه به وي نوم به یې زما د نوم سره یو شان وي او د پلار نوم به یې زما د پلار د نوم سره یو شان وي زمکه به د عدل او عدالت نه ډکه کړي لکه دده نه مخکې چې د ظلم او زیاتي نه ډکه وي .

او دا چې د رسول الله له اولادې څخه به وي ددې ذکر هم راغلی دی حضرت ام سلمة فرمايي رسول الله فرمایل : **المهدي من عترتي من ولد فاطمة** (ترجمة : مهدي به زما له اولادې څخه وي د فاطمې په اولاد کې به وي) .

په لقبونو کې یې مشهور لقب المهدي دی مهدي عربي لفظ دی اسم مفعول دی معنی یې ده داسې کس چې هدایت ورته شوی وي د لغت عالم امام ابن اثیر فرمايي : **المهدي: الذي قد هداه الله إلى الحق** (ترجمة : مهدي هغه چا ته ویل کیږي چې الله ورته سمې لارې ته هدایت کړی وي) نو د مهدي مکمل نوم داسې دی محمد بن عبد الله المهدي العلوي الفاطمي الحسني .

## د مهدي په اړه نظريات

د مهدي په اړه د علماوو مختلفې رایې دي د مثال په ډول :

[1] رواه الطبراني

## لمړی رایه

ځینې علماء وایي چې مهدي حضرت عیسی دی او د دوی دلیل یو حدیث دی چې په ابن ماجه کې راغلی دی په هغه کې ویل شوي دي **لا مهدي إلا عيسى بن مريم** (د عیسی بن مریم نه بغیر بل مهدي نشته) لکن علماوو دې حدیث ته ضعیف ویلي دي او له بله پلوه هلته داسې احادیث راغلي دي چې حضرت مهدي به د حضرت عیسی سره په یو ځا مونځ کوي نو که عیسی پخپله مهدي وي نو هلته به داسې نه راتلل .

## دوهمه رایه

ځینې علماء وایي چې مهدي د حضرت حسن بن علي په اولاده کې یو کس دی په آخره زمانه کې به راشي زمکه به د عدل او عدالت نه داسې ډکه کړي لکه له ده نه مخکې چې د ظلم او زیاتي نه ډکه وه پدې اړه زیات احادیث راغلي دي او که ځینې یې ضعیف هم دي خو ځینې پکي قوي شته چې یو بل ته سره قوت ورکوي همدا مینځنی مذهب دی او همدا د اهل السنة و الجماعة عقیده ده او ټول هغه روایات چې پکې د مهدي نوم او د پلار نوم ذکر شوي د همدې رایې تائید کوي .

## دریمه رایه

ځینې خلک داسې دي چې هغوی د مهدي له راتلو نه بالکل انکار کوي دا هغه کسان دي چې نه په احادیثو خبر دي او نه د علماوو اقوال ورته رسېدلي دي هغوی په خپل باطل مذهب باندې ولاړ دي او هغوی وايي چې د مهدي ټوله قصه یو ډول افسانه ده چې د شیعه ګانو په کوښښ سره د اهل السنة و الجماعة په عقیده کې ور ننوتلې ده او دوی وايي چې پدې اړه راغلي احادیث یا خو ضعیف دي او یا یو له بل سره ټکر دي .

## څلورمه رایه

څلورمه مشهوره رایه د شیعه ګانو ده هغوی وايي چې مهدي محمد بن الحسن العسکري المنتظر د حسین بن علي له اولادې څخه دی دوی وايي چې حاضر في الامصار او غائب عن الابصار دی د جابلقا په وهمي ښار کې دی (جابلقا ښار په دنیا کې نشته لکن دوی وايي چې دا یو ښار دی اوس مهدي چې پورتني صفات لري هلته تللی دی چې کله یې وخت شي نو بیا به راشي) دوی یې اوس هم انتظار کوي او دوی وايي چې هر وخت راتلی شي وخت یې معلوم نه دی .

په تاریخ کې ډېر ځله خلکو د مهدي کېدلو دعوې کړې دي خو رښتینی مهدي به یو وخت راشي مسلمانان ورته انتظار دي چې ټوله زمکه به له عدل او انصاف څخه ډکوي او په زمکه باندې به د لا اله الا الله بیرغ رپوي ، یهود یې انتظار وباسي ځکه هغوی وايي چې مهدي د دجال په وخت کې راځي او دجال ته دوی انتظار کوي ځکه د دجال اویا زره لښکر به ټول له یهودو څخه جوړ وي او دوی به اول هغه کسان وي چې د دجال متابعت به کوي او په هغه باندې به ایمان راوړي مسیحیان

(نصارا) یې هم انتظار کوي څکه دوی وايي چې مهدي هغه وخت راځي کله چې د حضرت عيسى د راښکته کېدو وخت شي هغوی فکر کوي چې کله عيسى راشي نو هغه به زمونږ په ليدلو زيات خوشحال شي چې مونږ تر اوسه پورې د هغه پيروان يو نو پدې توګه مسلمانان ، يهود او نصارا ټول د يو رښتيني مهدي د راتلو انتظار کوي چې تر اوسه پورې نه دی راغلی .

## د مهدي صفات

فراخ تندی به یې وي ، اوږده نرۍ پوزه به یې وي، ښکلی به جوړ وي او په سترګو کې به ډېر ښه ښکاره کيږي، په زمکه کې به وروسته لدې چې ظلم او زياتی خپور شوی وي عدل او انصاف خپور کړي، په داسې وخت کې به را ښکاره کيږي چې ټوله دنيا فساد لاندې کړې وي، دده له راتلو سره به اسلام غالب شي، اسمان به خپل بارانونه په زمکه باندې را پريږدي او له هرې خوا نه به رحمتونه را وريږي اسمان به خپل يو څاڅکی هم له زمکې نه حصاروي او زمکه به هم خپل برکتونه خلکو ته را وباسي او هېڅ شی به له خلکو څخه نه بندوي او ښه حاصلات به را وباسي .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول ﷲ فرمايل : **يخرج في آخر أمتي المهدي، يسقيه الله الغيث، وتخرج الأرض نباتها، ويعطي المال صحاحاً، وتكثر الماشية، وتعظم الأمة، يعيش سبعا، أو ثمانياً.**

ترجمة : زما د امت په آخر کې به مهدي راوزي ﷲ به باران ورکوي زمکه به خپل نبات ورته را وباسي هغه ته به مال ورکول کيږي حيوانات به زيات شي ، امت به معظم شي اوه يا آته کاله به پاتې شي .

# د مهدي د راوتلو ځای

دا چې مهدي به چېرته راوزي او په کوم ځای کې به را ښکاره کیږي حضرت ثوبان فرمایي رسول الله فرمایل : **يَقْتَتِلُ عِنْدَ كَنْزِكُمْ ثَلَاثَةٌ كُلُّهُمْ ابْنُ خَلِيفَةٍ ثُمَّ لَا يَصِيرُ إِلَى وَاحِدٍ مِنْهُمْ ، ثُمَّ تَطْلُعُ الرَّايَاتُ السُّودُ مِنْ قِبَلِ الْمَشْرِقِ ، فَيَقْتُلُونَكُمْ قَتْلًا لَمْ يُقْتَلْهُ قَوْمٌ - ثُمَّ ذَكَرَ شَيْئًا لَا أَحْفَظُهُ - فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُ فَبَايِعُوهُ وَلَوْ حَبْوًا عَلَى الثَّلْجِ .**

ترجمة : په مکه مکرمه کې به درې کسان جنګ کوي چې ټول به د خلیفه زامن وي (د خلیفه نه مراد داسې کس به وي چې د حکومت چارې به ورته سپارل شوې وي علماء وایي چې هغه خلیفه ترې مراد نه دی چې د الله او د رسول الله په لاره باندې برابر د مسلمانانو خلیفه وي ځکه د هغوی اولاد به داسې نه وي چې د واک په سر به یو له بل سره جنګ کوي) او همدارنګه علماء فرمایي چې په پورتني حدیث کې د بني ټکی راغلی دا یې هم مراد نه د چی خپله به د خلیفه زامن وي بلکه کېدای شي لمسیان یې وي ځکه لمسیانو ته هم د زامنو خطاب کیږي نو دوی به په خپلو کې پدې جنګ کوي چې هریو به دا دعوه کوي چې اوس د خلیفه په ځای د کېناستلو حق دده دی بیا به له جنګونو وروسته خلافت په دوی کې یو ته هم پاتې نشي (ځکه د دوی له جنګونو څخه به فتنه جوړه شي اووینې به تویې شي او ډېر خلک به قتل شي بیا به الله په دوی کې یو ته هم دا خلافت ورنه کړي) بیا به تور بیرغونه د حرمینو د مشرق له لوري را ښکاره شي (یعني چې دا د خلیفه اولاد چې نه د حرم خیال وساتي او نه د پاکو او معصومو مسلمانانو د معصومیت په اړه فکر وکوي نو الله به په مشرق لوري کې مجاهدین را پیدا کړي چې تور بیرغونه به یې وي (او هغوی به ددې کوښښ وکوي چې دا فتنه له خلکو نه ختمه کړي او

د فتنې دا اور ګل کړي او له هغه کسانو سره به سختي وکوي چې پدې فتنه کې شریکان وو ) بیا به هغوی دا خلک چې په فتنه کې یې برخه اخیستې داسې قتل کړي چې لدې به مخکې دوی چا داسې نه وي قتل کړي راوي وایي چې بیا رسول ﷺ نور څه وویل خو ماته په یاد نه دي نو کله چې تاسې ولید (یعني تاسې ته په دلا ئلو او نښو سره ثابته شوه چې دا مهدي دی نو بیعت ورسره وکوئ که هرڅو ستاسې لپاره سخت وي .

## د مهدي په راوتلو دلا ئل

د مهدي د راوتلو په اړه علماوو احادیث او آثار تول چې شمار کړي دي ۳۳۰ یې ترې را غونډ کړي دي زه ترېنه مشت نمونه خروار د خپلو لوستونکو په وړاندې اېږدم .

حضرت ابو سعید الخدري فرمایي رسول ﷺ فرمایل : **يخرج في آخر أمتي المهدي** . 1

ترجمة : زما د امت په آخر کې به مهدي راوزي .

حضرت ابو سعید الخدري فرمایي رسول ﷺ فرمایل : **الْمَهْدِيُّ مِنِّي ، أَجْلَى الْجَبْهَةِ ، أَقْنَى الْأَنْفِ ، يَمْلَأُ الْأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلًا كَمَا مُلِئَتْ جَوْرًا وَظُلْمًا ، يَمْلِكُ سَبْعَ سِنِينَ.** 2

ترجمة : مهدي به زما څخه وي (زما له اهل بیت څخه به وي) روښانه تندی به یې وي ، لوړه نرۍ پوزه به یې وي زمکه به د عدل او انصاف نه ډکه کړي لکه له ده څخه وړاندې چې د ظلم او زیاتي نه به ډکه وي اوه کاله به باداشاهي وکوي .

1 رواه مسلم
2 المنار المنيف

لکه مخکې چې تېر شول حضرت ام سلمة فرمايي رسول الله فرمايل : الْمَهْدِيُّ مِنْ عِتْرَتِي مِنْ وَلَدِ فَاطِمَةَ . [1]

ترجمة : مهدي به زما له اولادې څخه وي د فاطمې له اولاد څخه به وي .

لکه مخکې چې تېر شول حضرت عبد الله بن مسعود فرمايي رسول الله فرمايل : لو لم يبق من الدنيا إلا يوم واحد لطول الله ذلك اليوم حتى يبعث الله فيه رجلا مني -أو من أهل بيتي- يواطئ اسمه اسمي، واسم أبيه اسم أبي، يملأ الأرض قسطاً وعدلاً كما ملئت ظلماً وجوراً . [2]

ترجمة : که چېرته په دنيا کې صرف يوه ورځ پاتې شي نو هغه يوه ورځ به الله اوږده کړي تردې چې يو کس الله را وليږي چې زما نه به وي او يا يې وويل چې زما له اهل بيت نه به وي نوم به يې زما د نوم سره يو شان وي او د پلار نوم به يې زماد پلار د نوم سره يو شان وي زمکه به د عدل او عدالت نه ډکه کړي لکه دده نه مخکې چې د ظلم او زياتي نه ډکه وي .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله فرمايل : يَكُونُ فِي أُمَّتِي الْمَهْدِيُّ ، إِنْ قُصِرَ فَسَبْعٌ ، وَإِلَّا فَتِسْعٌ ، فَتَنْعَمُ فِيهِ أُمَّتِي نِعْمَةً لَمْ يَنْعَمُوا مِثْلَهَا قَطُّ ، تُؤْتَى أُكُلَهَا وَلَا تَدَّخِرُ مِنْهُمْ شَيْئًا ، وَالْمَالُ يَوْمَئِذٍ كُدُوسٌ فَيَقُومُ الرَّجُلُ فَيَقُولُ يَا مَهْدِيُّ أَعْطِنِي ، فَيَقُولُ : خُذْ .

ترجمة : زما د امت په آخر کې به مهدي وي که وخت يې لنډ شي نو اوه کاله به وي او کنه نو نه کاله به وي په هغه وخت کې به زما په امت داسې نعمتونه راځي چې بيا وربانديې بالکل نه وي راغلي خوراک به يې ورته راځي او هېڅوک به

---

[1] المنار المنيف
[2] رواه الطبراني

يې نه ذخيره کوي مال به په هغه وخت کې جمع وي يو کس به پاڅيږي وايي به مهدي ماته مال راکړه هغه به ورته وايي واخله (منع به نه کوي) .

## د مهدي راوتل

اسلام له شروع نه تر قيامت پورې تر مختلفو مرحلو څخه تيريږي او دا مرحلې په يو حديث کې نقل شوي دي حضرت حذيفة بن يمان فرمايي رسول الله فرمايل : **تَكُونُ النُّبُوَّةُ فِيكُمْ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا إِذَا شَاءَ أَنْ يَرْفَعَهَا، ثُمَّ تَكُونُ خِلاَفَةٌ عَلَى مِنْهَاجِ النُّبُوَّةِ فَتَكُونُ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا إِذَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَرْفَعَهَا، ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا عَاضًّا فَيَكُونُ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا إِذَا شَاءَ أَنْ يَرْفَعَهَا، ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا جَبْرِيَّةً فَتَكُونُ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا إِذَا شَاءَ أَنْ يَرْفَعَهَا، ثُمَّ تَكُونُ خِلاَفَةً عَلَى مِنْهَاجِ النُّبُوَّةِ.. ثُمَّ سَكَتَ .** [1]

ترجمة : په تاسې کې به نبوت وي ترڅو پورې چې د الله خوښه وي بيا به يې الله پورته کړي بيا به د نبوت په طريقه خلافت وي او څو چې د الله خوښه وي موجود به وي بيا به يې الله پورته کړي بيا به يوه سخته بادشاهي وي څومره چې د الله خوښه وي موجوده به وي بيا به يې الله پورته کړي بيا به يوه ظالمه بادشاهي وي تر هغه وخته به وي چې د الله ورته خوښه وي بيا به يې الله پورته کړي بيا به د رسول الله په نبوت باندې خلافت وي بيا رسول الله چُپ شو .

علماء کرام فرمايي چې پدې حديث کې پنځه مرحلې يادې کړل شوي دي.

لمړى مرحله

---

[1] رواه الامام احمد

د نبوت مرحله ده او دا تر ۲۳ کلونو پورې (د رسول الله تر حیات مبارکه پورې) پاتې شوه .

دوهمه مرحله

د نبوت په طریقه د خلافت مرحله دېرش کاله پاتې شوه چې د حضرت ابو بکر صدیق ، حضرت عمر فاروق، حضرت عثمان ذي النورین او حضرت علي د خلافت دوره وه .

دریمه مرحله

سخته بادشاهي به وي علماء وایي چې دا هغه بادشاهي وه چې بنو امیة جوړه کړه او د خلافت عثماني تر آخر پورې یې دوام وکولو .

څلورمه مرحله

ظالمه بادشاهي دا هغه مرحله ده چې د استعمار له دخول سره شروع شوه او د عربو زمکه یې په برخو او دولتونو تقسیم کړه او جبارین او ظالمان حکمرانان په هره برخه مسلط شول او په دوی کې اکثر د پردیو په اشارو باندې چلیږي او په یوه معنی نه په بله تر استعمار لاندې دي .

پنځمه مرحله

یو ځل بیا خلافت په هغه طریقه چې د رسول الله د طریقې سره برابره وي علماء فرمایي دا د حضرت مهدي د خلافت دوره ده چې را روانه ده ټوله زمکه به د عدل او انصاف نه ډکه کړي.

د مهدي په وخت کې عجائب

- الله به د مهدي په لاس څه کرامات ښکاره کړي او دده په وخت کې به عجیبه کارونه وشي چې تر هغه وخته پورې به یې چا سارى نه وي لیدلى د مثال په ډول:
- په ده سره به امت جمع کیږي او دده سره به بیعت کول غواړي او دى به نه غواړي چې دا مسئولیت په غاړه واخلي .
- دده په وخت کې به اسلام پورته شي او د اسلام نه بغیر نور ټول ملتونه او دینونه به ښکته شي او نوم به یې ښکاره پاتې نشي .
- ده ته به الله پورته والى ورکړي دده په جنډه به هېڅ جنډه لوړه پاتې نشي .
- دده په لاس به په زمکه کې داسې ځایونه فتح کیږي چې دده څخه وړاندې چا نه وو فتح کړي لکه روما الفاتیکان .
- دده په مخ کې چې کله څه مشکله قلعه راشي دى به تکبیر وایي دا به دده کرامت وي چې هغه قلعه به ورانیږي .
- د سفیاني ا لثاني لښکر چې په ده پسې به ور روان وي د مکې او مدینې په مینځ کې به په زمکه ننوزي .
- دده په وخت کې د القسطنطینیة د دریمې فتح نه وروسته به دجال را ښکاره شي .
- حضرت عیسى به دده په وخت کې را ښکته شي او په ده پسې به مونځ وکوي .
- یاجوج ماجوج به دده په وخت کې را بهر شي
- زمکه به دده په وخت کې خپلې خزانې بهر ته را وباسي .
- له ده څخه به ټول مخلوق رضا وي هېڅوک به ورڅخه شکایت نلري .
- کله چې دده حکومت وي له ټولو خلکو سره به یو شان د انصاف معامله کوي .

- څه شی چې تقسیم کوي په برابره توګه به یې تقسیم کوي او د عدل او انصاف نمونه به وي .
- کوم خلک چې نېک وي دده په وخت کې به نور هم نېکان شي او کوم چې بد عمل وي دده په وخت کې به اکثر توبه وباسي .
- دا امت به داسې له نعمتونو څخه ډک شي چې د مهدي تر وخت وړاندې یې کله داسې نعمتونه نه وو لیدلي .
- اسمان به یو څاڅکی باران له زمکې څخه نه سپموي او زمکه به یوه ګیاه هم له شنه کېدلو څخه نه بندوي باران به اوري او زمکه به شنه وي او ښه حاصلات به ورکوي .
- د مهدي له علامو څخه دي چې هغه به په کار کې ډېر سخت وي په مال کې به ډېر سخي وي او په غریبانو به ډېر مهربان وي .
- دده په وخت کې به زمکه ډېره ښائسته وي په هغه وخت کې به په زمکه کې خراب ځای پاتې نشي هره خوا به آبادي ښکاره کیږي .
- ددې هرڅه سره به په زمکه کې یوازې اوه کاله او څو میاشتې پاتې کیږي په ځینې روایاتو کې ۹ کاله هم یاد شوي دي .

## ددې عجائبو دلائل

حضرت ابو هریره فرمایي رسول ﷺ فرمایل : تَقِيءُ الأَرْضُ أَفْلاَذَ كَبِدِهَا أَمْثَالَ الأُسْطُوَانِ مِنْ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ، فَيَجِيءُ الْقَاتِلُ فَيَقُولُ: فِي هَذَا قَتَلْتُ، وَيَجِيءُ الْقَاطِعُ فَيَقُولُ: فِي هَذَا قَطَعْتُ رَحِمِي، وَيَجِيءُ السَّارِقُ فَيَقُولُ، فِي هَذَا قُطِعَتْ يَدِي، ثُمَّ يَدَعُونَهُ فَلاَ يَأْخُذُونَ مِنْهُ شَيْئًا .[1]

[1] رواه مسلم

ترجمة : زمکه به قی کوي د خپل جیګر ټوټې (یعني خپلې خزانې) لکه د سرو او سپینو زرو ستنې یو قاتل به راشي وایي به ما ددې لپاره قتل کړی وو ، یو کس چې د خپلوانو سره یې خپلولي پرې کړې وي هغه به راشي وایي چې ما ددې لپاره له خپلوانو سره خپلولي پرې کړه ، غل به راشي وایي به زما لاس ددې لپاره پرې کړل شو بیا به را وغوښتل شي (ورته به اجازه وکوله شي چې لدې مال نه دې څه واخلي چې د دوی زړه غواړي) خو دوی به ورڅخه هېڅ وانخلي .

حضرت عبد الله بن عباس فرمایي رسول الله فرمایل : **منا المهدي الذي يملأ الأرض عدلا كما ملئت جورا وتأمن البهائم والسباع وتلقي الأرض أفلاذ كبدها قال قلت وما أفلاذ كبدها قال أمثال الإسطوانة من الذهب والفضة .** [1]

ترجمة : زمونږ نه به مهدي وي هغه چې زمکه به د عدل او انصاف نه ډکه کړي لکه څنګه چې مخکې د ظلم نه ډکه شوې وه تردې چې د حیواناتو او ځناورو په مینځ کې به هم امن راشي او په یو بل به تیری نه کوي او زمکه به را غورځوي د خپل جیګر ټوټې حضرت عبد الله بن عباس فرمایي ما ورڅخه پوښتنه وکوله چې د ځیګر ټوټې یې څه شی دي؟ رسول الله وفرمایل : لکه د سرو او سپینو زرو ستنې .

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله فرمایل : **لاَ تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَكْثُرَ فِيكُمْ الْمَالُ فَيَفِيضَ، حَتَّى يُهِمَّ رَبَّ الْمَالِ مَنْ يَقْبَلُهُ مِنْهُ صَدَقَةً، وَيُدْعَى إِلَيْهِ الرَّجُلُ فَيَقُولُ لاَ أَرَبَ لِي فِيهِ.**

ترجمة : قیامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو مال زیات شي او را تویې شي (برکت پکې راشي او له هرڅا سره زیات شي) تردې چې د مال خاوند به

[1] رواه الحاكم في المستدرك

صدقه وباسي داسې ځوک به لټوي چې دا صدقه ورڅخه قبوله کړي يو کس به ورته را وغواړي او ورته به ووايي چې دا صدقه قبوله کړه هغه به ورته ووايي ضرورت مې ورته نشته .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله فرمايل : إِنَّ فِي أُمَّتِي الْمَهْدِيَّ.. يَخْرُجُ يَعِيشُ سَبْعَ أَوْ تِسْعَ سِنِينَ، فَيَجِيءُ إِلَيْهِ رَجُلٌ فَيَقُولُ: يَا مَهْدِيُّ أَعْطِنِي أَعْطِنِي، فَيَحْثِي لَهُ فِي ثَوْبِهِ مَا اسْتَطَاعَ أَنْ يَحْمِلَهُ. [1]

ترجمة : زما په امت کې يو کس راځي مهدي نوم به يې وي را بهر به شي اوه او يا نه کاله ژوند به وکوي (د راوي شک دی چې اوه يې ياد کړل او که نه) دده په وخت کې به يو کس ورته راشي ورته به ووايي اې مهدي راکړه راکړه د هغه په جامه کې به دومره مال ور تويې کړي چې ځومره هغه وړلی شي .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله فرمايل : يَكُونُ فِي أُمَّتِي الْمَهْدِيُّ إِنْ قُصِرَ فَسَبْعٌ وَإِلا فَتِسْعٌ، فَتَنْعَمُ فِيهِ أُمَّتِي نِعْمَةً لَمْ يَنْعَمُوا مِثْلَهَا قَطُّ، تُؤْتَى أُكُلَهَا وَلاَ تَدَّخِرُ مِنْهُمْ شَيْئًا.. وَالْمَالُ يَوْمَئِذٍ كُدُوسٌ، فَيَقُومُ الرَّجُلُ فَيَقُولُ: يَا مَهْدِيُّ أَعْطِنِي فَيَقُولُ خُذْ . [2]

ترجمة : زما په امت کې به يو کس وي د مهدي په نوم که يې عمر لنډ شي نو اوه کاله به وي او که لنډ نشي نو نه کاله به وي په هغه وخت کې به په امت باندې دومره نعمتونه وي چې په بل وخت کې به نه وي خوراک به يې ورته راځي او هېڅ ذخيره به نه جوړوي او مال به پدې وخت کې جمع وي يو کس به را پاڅيږي وبه وايي : اې مهدي ماته راکړه هغه به ورته وايي واخله (انکار به ورته نه کوي) .

---

[1] رواه الترمذي
[2] رواه الحاكم في المستدرک

حضرت ام سلمة فرمايي رسول ﷲ فرمايل : **فَيَقْسِمُ الْمَالَ وَيَعْمَلُ فِي النَّاسِ بِسُنَّةِ نَبِيِّهِمْ وَيُلْقِي الإِسْلاَمُ بِجِرَانِهِ فِي الأَرْضِ، فَيَلْبَثُ سَبْعَ سِنِينَ، ثُمَّ يُتَوَفَّى وَيُصَلِّي عَلَيْهِ الْمُسْلِمُونَ .** [1]

ترجمة : مال به تقسيم كوي او د خلكو په مينځ كې به د رسول ﷲ د سنتو مطابق كار كوي او په زمكه كې به همسايه ګانو ته اسلام ور وړاندې كړي اوه كاله به ژوند وكوي بيا به وفات شي او مسلمانان به وربانديې د جنازې مونځ وكوي .

حضرت عبد ﷲ بن مسعود فرمايي رسول ﷲ فرمايل : **لاَ تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتَّى يَمْلِكَ الْعَرَبَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يُوَاطِئُ اسْمُهُ اسْمِي.** [2]

ترجمة : دنيا تر هغه وخته پورې نه ځي (تر هغه وخته پورې نه قيامت كيږي) ترڅو په عربو باندې بادشاهي د يو كس راشي چې زما له اهل بيت څخه به وي نوم به يې زما له نوم سره يو شان وي .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول ﷲ فرمايل : **أُبَشِّرُكُمْ بِالْمَهْدِيِّ، يُبْعَثُ فِي أُمَّتِي عَلَى اخْتِلاَفٍ مِنْ النَّاسِ وَزَلاَزِلَ، فَيَمْلأُ الأَرْضَ قِسْطًا وَعَدْلاً، كَمَا مُلِئَتْ جَوْرًا وَظُلْمًا.** [3]

ترجمة : زه تاسې ته په مهدي سره زيرى دركوم چې زما په امت كې به راځي د خلكو په اختلاف كې او د زلزلو په وخت كې زمكه به د عدل او انصاف نه ډكه كړي وروسته لدې چې د ظلم او زياتي نه ډكه وه .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول ﷲ فرمايل : **يرضى عنه ساكن السماء وساكن الأرض، لا تدع السماء**

---

[1] رواه ابو دواد
[2] رواه الترمذي
[3] رواه الامام احمد

من قطرها شيئا إلا صبته، ولا الأرض من نباتها شيئا إلا أخرجته، حتى يتمنى الأحياء الأموات . [1]

ترجمة : له هغه نه به د اسمان او زمكې اهل تول خوشحال وي اسمان به يو څاڅكى نه سپموي بلكه را تويوي به يې او زمكه به يوه ګياه هم نه سپموي بلكه را شنه كوي به يې تردې چې دا ژوندي خلك د مړيو د را ژوندې كېدلو تمنا وكوي (او وايي به كاش چې هغه خلك ژوندي واى او اوس يې دا د سهولت او راحت نه ډک ژوند ليدلى واى) .

---

[1] رواه البخاري

# مسیح الدجال

د دجال راو وتل هم د قیامت له لویو نښو څخه یوه نښه ده د دجال په اړه مو څو بحثونو ته فام را ګرځوم .

## د دجال نوم

دجال ته مسیح هم ویل شوی دی په بخاري او مسلم او نورو کتابونو کې مختلف روایات راغلي دي چې د مسیح ټکی ورسره کېښودل شوی دی او د مسیح لفظ د دجال سره هم ذکر شوی دی او په عین حال کې د حضرت عیسی سره هم یاد کړل شوی دی خو رسول الله ﷺ په یو حدیث کې د مسیح او مسیح په مینځ کې فرق پیدې سره کړی دی چې دجال ته یې مسیح الضلالة ویلي دي نو بیا حضرت عیسی مسیح الهدایة پاتې شو او کله چې مسیح یوازې ذکر کړل شي نو بیا ترینه حضرت عیسی مراد وي او که چېرته په کتابونو کې ، علمي بحثونو او څېړنو کې مسیح لفظ راځي او مطلب یې دجال وي نو بیا ورسره اضافه کیږي مسیح الدجال او دجال ته مسیح ددې امله ویل کیږي چې یوه سترګه یې مسح شویده په یوه سترګهړوند دی چې رڼا پکې نشته او یا دا چې یسیح (چکر به وهي) په ټوله دنیا کې او حضرت عیسی ته مسیح ددې امله ویل کیږي چې ده به په زمکه کې چکر وهلو او پیاده به ډېر ګرځېدو او یا ددې امله چې کوم بیمار به یې مسح کړو هغه ته به الله شفاء ورکوله .

او دجال له (الدجل) لفظ څخه دی دا پردې او پټولو ته ویل کیږي او ده ته دجال ویل کیږي ځکه دی به هم حق په باطل سره پټوي .

دا دجال چې کوم مسیح الدجال دی په دنیا کې به اول دجال نه وي بلکه دا به د ټولو دجالانو آخر وي او تردې په وړاندې کتاب کې تېر شوي دي چې تر قیامت پورې به د یو قول له مخې دېرش دجالان را پیدا شي رسول الله ﷺ فرمایي : **إن بين يدي الساعة ثلاثين دجالاً كذاباً** (تر قیامت وړاندې دېرش دجالان دروا غزن شته) .

د دجال راوتل د مهدي نه وروسته د قیامت لمړی لویه نښه ده ځینې علماوو ویلي دي چې د قیامت په لویو نښو کې اوله نښه د لمر له مغرب نه راختل دي او دوی دلیل د حضرت عمرو بن العاص په یو حدیث نیسي هلته هغه مبارک فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **إن أول الآيات خروجاً طلوعُ الشمس من مغربها وخروج الدّابة على الناس ضحىً فأيتّهما ما كانت قبل صاحبتها فالأخرى على إثرها قريب.**

ترجمة : بېشکه اوله نښه د قیامت په راوتلو کې د مغرب له لوري نه د لمر راختل دي او د یوې دابې راوتل دي (تفصیل یې راځي) په خلکو باندې د ځاښت په وخت کې پدې دواړو کې چې هره یوه مخکې شوه بله به ورپسې راشي .

ددې امله دوی وایي چې د مغرب له لوري نه د لمر راختل لمړی نښه ده لکن ځینې نور علماء فرمایي چې دا رایه صحیح نه ده بلکه کله چې لمر د مغرب له لوري نه را خیږي تر هغې به وړاندې دری د قیامت لویې نښې تېرې شوې وي ددجال را ښکاره کېدل ، د حضرت عیسی را ښکته کېدل او د یاجوج ماجوج را وتل او ددې رایې علماء د دلیل په ډول فرمایي :

کله چې لمر د مغرب له لوري را پورته شي نو لدې سره خو د توبې دروازه بندیږي او کوم بنده چې تردې وړاندې ایمان نه وي راوړی تردې

وروسته ورته ايمان راوړل هېڅ فايده نه کوي او يا يې ايمان راوړی وي خو په ايمان کې يې نېک اعمال نه وي کړي نو ددېنه وروسته هېڅ نشي کېدلی .

او وروسته به راشي چې کله حضرت عيسى را ښکته شي نو خلک به اسلام ته راو وغواړي او ډېر خلک به ورسره اسلام قبول کړي او ډېر نصارا به له ده سره مسلمانان شي ﷲ فرمايي : **وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلاَّ لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا (159)** . [1]

ترجمة : او له اهل کتابو څخه به داسې څوک پاتې نشي مګر په ده (عيسى) باندې به د هغه تر مرګ وړاندې ايمان راوړي او د قيامت په ورځ به دی (عيسى) په دوی باندې ګواه وي .

او کله چېرته د مغرب له لوري لمر را ختل پر حضرت عيسى وړاندې وای نو دې ايمان به خلکو ته هېڅ فايده نه وای کړې ددې امله خو حافظ ابن حجر هم فرمايي : **إن مدة لُبث الدجّال إلى أن يقتله عيسى ثم لُبث عيسى وخروج يأجوج ومأجوج كل ذلك سابق على طلوع الشمس من المغرب، فالذي يترجّحُ من مجموع الأخبار أن خروج الدجال أول الآيات العظام المؤذنة بتغير الأحوال العامة في معظم الأرض وينتهي ذلك بموت عيسى بن مريم، وأنّ طلوع الشمس من المغرب هو أول الآيات العظام المؤذنة بتغير أحوال العالم العلوي، وينتهي ذلك بقيام الساعة.** [2]

ترجمة : بېشکه موده د پاتې کېدلو د دجال تر هغه وخته پورې ده چې حضرت عيسى يې مړ کړي بيا د حضرت عيسى پاتې کېدل او د ياجوج او ماجوج راوتل دا ټول به تردې وړاندې وي چې لمر د لمر لوېده له خوا را پورته شي هغه نظر چې د

---

[1] سورة النساء

[2] فتح الباري

تولو اقوالو څخه را ښکاره کیږي هغه دادی چې د دجال راوتل په لویو نښو کې لمړی نښه ده کوم به چې عام احوال د زمکې په لویه برخه کې بدل کړي او دا به د حضرت عیسی په وفات باندې پای ته ورسیږي او لمر راختل د لمر لوېده لخوا لویه نښه ده چې د علوي عالم احوال به بدل کړي او دا به د قیامت په شروع سره پای ته ورسیږي .

## د دجال صفات

دجال به یو انسان وي ، شکل به یې مسخ شوی وي ، شیطاني ډول به وي ، شیطاني شکل به یې وي ، شیطانان به د مرستې لپاره هر وخت ورسره وي په اول کې به یې اویا زره یهودیان متابعت اعلان کړي او په ده پسې به روان وي.

رسول الله ﷺ ددې لپاره چې خپل امت ورڅخه خبر کړي ترڅو د هغه په فتنه کې رانشي ډېر صفات بیان کړي دي په یوه اوږده حدیث کې رسول الله ﷺ د دجال په اړه ډېر څه ویلي دي زه که د حدیث متن هم ایږدم او بیا د هغه ترجمه هم کوم نو خبره ډېره اوږدیږي ځکه راساً یې ترجمې ته ورځم د مسلم شریف حدیث دی حضرت ابي امامة الباهلي

فرمایي رسول الله ﷺ مونږ ته خطبه وویله او اکثر خطبه یې د دجال په اړه وه له هغه نه یې مونږ ډارولو او خبرولو او د هغه په اړه یې راته خبرې کولې ځینې هغه خبرې چې پدې ورځ یې پدې خطبه کې مونږ ته وکولې هغه دا وې :

له کومه وخته چې الله د حضرت آدم اولاده پیدا کړېده ددجال تر فتنې لویه فتنه نه ده راغلې .

ﷲ چې کوم نبي را لېږلی دی هغه خپل امت د دجال له فتنې څخه ډار کړی دی .

زه د ټولو انبیاوو آخر یم او تاسې د امتونو آخر یاست او هغه په تاسې کې خامخا را وزي او خامخا په تاسې کې راتلونکی دی .

که چېرته پداسې وخت کې را بهر شي چې زه په تاسې کې وم نو زه به د هر مسلم له اړخه له هغه سره دلیل ووایم او که داسې وخت را بهر شي چې زه ستاسې په مینځ کې نه وم بیا هرڅوک د خپل اړخ نه به دلیل ویونکی وي او ﷲ بیا زما خلیفه دی په هر مسلمان باندې .

دا به د شام او عراق په مینځ کې را وزي او ښي او چپ طرف ته به لاړ شي اې د ﷲ بندګانو هغه وخت تاسې په خپل ایمان باندې ټینګ پاتې شئ .

زه درته نن د دجال صفت پداسې توګه بیانوم چې زما نه وړاندې بل نبي داسې نه دی بیان کړی.

هغه به په اول کې شروع وکوي وايي به زه نبي یم (تاسې یې په خبرو دوکه نه شئ) زما نه وروسته بل نبي نشته.

بیا به لږ په خپله ګمراهي کې نور هم وړاندې شي بیا به وايي زه ستاسې رب یم ... رسول ﷲ ﷺ خپل امت خبروي او فرمایي ترڅو چې تاسې ژوندي وئ تاسې خپل رب نشي لیدلی.

او هغه به په یوه سترګه ړوند وي او ستاسې رب په یوه سترګه ړوند نه دی .

د هغه د دوو سترګو په مینځ کې به لیکلي وي کافر.

هر مؤمن به د هغه د سترګو په مینځ کې لیکلی کافر ټکی لوستلی شي که لیکونکي وي او که نه وي .

د هغه یوه فتنه داده چې له هغه سره به جنت او دوزخ وي خو د هغه دوزخ په رښتیا کې جنت دی (که هغه څوک دوزخ ته واچوي هغه به الله جنت ته بیایي) او جنت یې دوزخ دی (څوک چې هغه خوشحاله کړي او هغه یې جنت ته ولیږي نو الله به هغه کس دوزخ ته لیږي) .

هغه کس چې د هغه دوزخ ته وغورځېد نو له الله نه د پناه وغواړي او د سورة کهف اول آیتونه د تلاوت کړي.

الله به هغه دده اور ورته برداً او سلاماً کړي لکه د حضرت ابراهیم لپاره یې چې کړی وو .

بله فتنه یې داده چې یو بانډچي (غرني سړي) ته به وایي ته فکر وکوه که زه ستا مور پلار درته ژوندي کړم بیا به ته دا ومنې چې زه ستا رب یم؟ هغه به ورته ووایي : هو بیا به د ومنم هغه به یې قبر ته اشاره وکوي د هغه قبر نه به شیطان دده د مور په شکل کې ورته را بهر شي او یا دپلار په شکل کې او یا د دواړو په شکل کې او د یو روایت له مخې چې ده ته به غاړه هم ورکړي (ځکه هغه خو به شیطان وي او د دجال مرسته به په همدې ډول سره کوي ترڅو زیات خلک وربانددې ګمراه کړي) نو بیا به دې کس ته وایي دا ستا رب دی ویې منه نو هغه غرنی او بانډه چي سړی به هم پرې یقین وکوي.

بله فتنه به یې داوي چې په یوه مؤمن به مسلط شي هغه به مړ کړي هغه مؤمن به را نیسي او اره به وربانددې کیږدي دوه برخې به یې کړي بیا به خلکو ته وایي چې دا وګورئ زه یې

راژوندی کوم او بیا ما نه مني او وايي چې رب مې بل څوک دی چې هغه را ژوندی شي دی به ورته وايي من ربک ؟ (يعني ستا رب څوک دی؟) هغه به وايي زما رب الله دی او والله ته ما نن په سمه معنی و پېژندلې او ته دجال ئې .

او د هغه بله فتنه به دا وي چې اسمان ته به امر کوي چې باران وکوي هغه به باران کوي او زمکې ته به امر کوي چې ګیاه شنه کړي زمکه به ګیاه شنه کوي.

د هغه یوه فتنه به دا وي چې پداسې کلي به ورځي چې دده خبره نه مني نو د هغه کلي ټول حیوانات او څاروي به مړه شي .

په یوه کلي به ورځي چې هغه دی په خدايي سره ومني او دده متابعت وکوي اسمان ته به امر وکوي چې پدې کلي باران وکوه نو په هغه کلي باندې به باران وشي زمکې ته به امر وکوي چې ددې خلکو لپاره ګیاه شنه کړه د هغه خلکو زمکې به را شنې شي او د هغوی مالونه به پکې ماړه شي او زیاتې شودې به پکې پیدا شي او مالونه به داسې چاغ شي چې تردې وړاندې دوی خپل مالونه داسې چاغ نه وو لیدلي.

په لږ وخت کې به په ټوله دنیا کې را تاو شي صرف مکې مکرمې او مدینې منورې ته به نشي ننوتلی.

له هرې لارې چې ورځي هلته به ملائکې ورته له تورو سره ولاړې وي.

مدینې منورې ته نېږدې يو خوړ الضریب الأحمر عند منقطع السبخة ته به ور ورسیږي او هلته به ودریږي .

مدينه منوره به درى جټكې خپل اهل ته وركړي او په مدينه كې به هېڅ منافق او منافقه پاتې نشي مگر ورته را بهر به شي .

مدينه منوره به داسې پاكه شي لكه د آهنگر هغه د اور شى چې له وسپنې څخه گندگي لرې كوي .

دې ورځې ته به د خلاص ورځ وويله شي .

حضرت أم شريك بنت أبي العكر ورته وويل : يا رسول الله پدې ورځ به عرب چېرته وي؟ رسول الله ﷺ وويل : هغوى به پدې ورځ لږ وي .

زياته برخه به يې په بيت المقدس كې وي .

امام به يې يو نېک انسان وي . (علماء وايي دا مهدى دى) .

كله چې د دوى امام د سحر مانځه ته وړاندې كيږي پدې وخت كې به حضرت عيسى را ښكته شي پدې وخت كې به امام بېرته په شا روان شي او په شا به لاړ شي چې حضرت عيسى مانځه ته وړاندې شي حضرت عيسى به يې د اوږو په مينځ كې لاس ور كېږدي او ورته به ووايي چې مخكې شه دا ستا حق دى امام به مخكې شي قامت به وويل شي او جمع به ودريږي .

كله چې له مانځه نه را وگرځي حضرت عيسى به ووايي دروازه خلاصه كړئ ، دروازه به خلاصه شي تر دروزاه هاغه خوا ته به دجال وي .

د هغه سره به د اويا زره يهودانو فوج وي چې ټول به په تورو مسلح وي .

کله چې دجال حضرت عیسی ته وګوري دجال به داسې ویلې شي لکه مالګه چې په اوبو کې ویلې کیږي.

او په منډه به تړینه تېښته وکوي حضرت عیسی به پسې ور وړاندې شي او ورته به ووایي په تا کې زما یو ځل یو وار کول دي ته به راڅخه خلاص نه شې .

هغه به را ګیر کړي او مړ به یې کړي .

پدې وخت کې به د یهودو لښکر د مسلمانانو په وړاندې ماتې وخوري اویوه خوا بله خوا به و تښتي او چې کوم شی پیدا کوي د هغې شا ته به پټ شي داسې وخت به راشي چې هرشی که ونه وي ، بوټی وي ، حیوان وي ، دېوال وي مسلمان ته به وایي عبد الله ا لمسلم (اې د الله مسلمانه بنده) راشه زما شا ته یهودي پټ دی مړ یې کړه.

او د دجال ټول عمر څلوېښت کاله دی .

خو کال یې لکه نیم کال داسې دی کال یې لکه میاشت داسې دی او میاشت یې لکه جُمعه داسې ده .

آخرې ورځې به ډېرې لنډې وې او ډېرې زر زر به تیریږي .

یو څوک به وي سحر به د مدینې له یوې دروازې نه روانیږي دوهمې دروازې ته به نه وي رسېدلی چې پرې بیګاه به شي .

یو چا ورته وویل : په هغه لنډو ورځو کې به بیا مونږ مونځ څنګه کوو؟ رسول الله ﷺ وویل : داسې به یې تقسیم کوئ لکه پدې اوږدو ورځو کې یې چې څنګه کوئ نو پدې ډول به بیا مونځ کوئ .

بیا به عیسی بن مریم زما په امت کې عادل حاکم وي او انصاف کونکی امام به وي ، صلیب به مات کړي ، خنزیر به مړ کړي ، د خلکو له مالونو څخه به زکات اخیستل پریږدي په اوښ او پسه پسې به نه ګرځي ، کینه او دښمني به پورته شي ، یو بل ته به ضرر رسول بند شي تردې چې یوماشوم به مار په لاس کې اخلي هغه به ورته ضرر نه رسوي .

لېوه به له مېږو سره داسې ګرځي لکه د هغوی ساتونکی سپی چې وي .

زمکه به له امن څخه داسې ډکیږي لکه لوښی چې له اوبو څخه ډکیږي ، صرف یوه کلمه به وي ، یوازې د الله عبادت به کیږي ، جنګونه به ختم شي ، برکتونه به زیات شي تردې چې څو کسان به د انګورو په یوه وږي را ټولیږي او هغه ټول به پرې مړیږي ، څو کسان به په یوه انار سره را ټولیږي او هغه ټول به پرې مړیږي ، یو غوایی به په دومره دومره مال وي ( قیمته یې یاد کړو ) او آس به په یو څو درهمو وي .

دوی پوښتنه وکوله یا رسول الله ﷺ دا آس به ولې ارزانه وي؟ رسول الله ﷺ ورته وویل : ځکه ددینه وروسته به هېڅوک هم د جنګ لپاره وربانديې سپور نشي .

بیا ورته وویل شول یا رسول الله ﷺ دا غوایی به ولې ګران وي؟ رسول الله ﷺ ورته وویل : چې ځومره زمکه وي ټوله به کرله کیږي .

او د دجال تر راوتلو وړاندې به دری کاله ډېره سخته قحطي تېره شي خلک به پکې زیات وږي شي الله به په اول کال کې اسمان ته امر وکوي نو په دریو کې به یوه برخه باران بند شي او زمکې ته

به امر وكوي نو په دريو كې به يوه برخه ګياه بنده كړي بيا به په دوهم كال كې اسمان ته امر وكوي نو هغه دوه برخې نور باران به هم بند كړي او زمكه به هغه دوه برخې ګياه چې شنه كوي يې هغه به هم بنده كړي بيا به الله په دريم كال اسمان ته امر وكوي او هغه به ټول باران بند كړي بيا به يو څاڅكى هم نه را ښكته كيږي او زمكې ته به امر وكوي هغه به خپله ټوله ګياه بنده كړي هېڅ شين بوټى به نه را پورته كيږي حيوانات به اكثر هلاك شي الا ما شاء الله .

چا ورته وويل پدې وخت كې به خلک څه شى خوري؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : **لا اله الا الله** ويل ، **الله اكبر** ويل ، **سبحان الله** ويل ، **الحمد لله** ويل به دوى ته د خوراک په ځاى كار وركوي .[1]

همدارنګه رسول الله ﷺ د دجال په اړه فرمايي : **ما أهبط اله تعالى إلى الأرض- منذ خلق آدم إلى أن تقوم الساعة- فتنة أعظم من فتنة الدجال ، وقد قلت فيه قولاً لم يقله أحد قبلي إنه آدم جعد ممسوح عين اليسار، على عينه ظفرة غليظة، وإنه يبرئ الأكمه والأبرص، ويقول: أنا ربكم. فمن قال: ربي الله، فلا فتنة عليه، ومن قال: أنت ربي. فقد افتتن، يلبث فيكم ما شاء الله، ثم ينزل عيسى ابن مريم مصدقاً بمحمد صلى الله عليه وسلم على ملته، إماماً مهديّاً، وحكماً عدلاً، فيقتل الدجال.**[2]

ترجمة : له كومې ورځې نه چې الله حضرت آدم پيدا كړى دى تر قيامت پورې الله زمكې ته د دجال نه لويه فتنه نه راښكته كوي او د دجال په اړه ما داسې څه ويلي دي چې زما نه وړاندې بيا چا نه دي ويلي هغه يو ګړګوتي ويښتان لرونكى سړى دى ، د چپ طرف سترګه يې ړنده ده ، په سترګه

[1] رواه بالتمام ابن ماجة
[2] رواه الطبراني

کې یې شین والی دی هغه به د برګي بیماري علاج کوي او خلکو ته به وايي چې زه ستاسې رب یم چا چې وویل زما رب الله دی نو دا دده په فتنه کې نه دی راغلی او چا چې وویل ته زما رب یې هغه په فتنه کې راغلو څومره چې د الله خوښه شي په تاسې کې به ژوند وکوي بیا به حضرت عیسی پداسې حالت کې را ښکته شي چې د محمد ﷺ تصدیق به کوي او د هغه په ملت به وي په هدایت برابر امام به وي ، عادل حاکم به وي دجال به مړ کړي .

همدارنګه علماوو یې له احادیثو څخه نور صفات هم راټول کړي دي فرمايي : ډک بدن به یې وي ، لنډی به وي ، د مخ رنګ به یې غنم رنګی وي سوروالي ته به مائل وي ، د سر وېښته به یې ګړګوتي وي سخت به وي ، تندی به یې فراخ وي ، ږیره به یې ولاړه وي ، چپه سترګه به یې ړنده وي او ښۍ سترګه به یې شنه وي ، پنډۍ به یې سره لرې لرې وي کله چې ځي داسې به ښکاره کیږي لکه ده چې قصداً پښې سره لرې کړې وي ، اواز به یې داسې وي لکه د پوزې نه چې راوزي ، شنډ به وي اولاد به یې نه کیږي ، د سترګو په مینځ کې به یې لیکلي وي کافر هر مؤمن به یې لوستلی شي که لوستونکی وي او که نه وي ، اهل الکتاب چې نومونه په نمبرو باندې بدلوي دده د نومر نمبر به ٦٦٠ استعمالوي اهل کتاب به دده نوم ته کوډ ورکوي او هغه کوډ به استعمالوي هغه کوډ به یې دا وي .

## دجال له څنګه کورنۍ څخه دی؟

علماء فرمايي دجال له يهودې کورنۍ څخه دی هغه يهودي دی لکن عام يهودي نه دی هغه د يهوديت خبرې هم نه مني پخپله د خدايي دعوه کوي او په تورات باندې هيڅ ايمان نه راوړي لکه مخکې چې تېر شول اول به دعوه وکوي چې دی نبي دی بيا به وروسته د الوهيت دعوه وکوي د مجوسو سره به يې ډېره ښه علاقه وي نو ځکه به يې اول متابعت هم يهود او مجوسيان کوي له ده سره به د يهودو مشهور ساحران ملګري وي عجيب عجيب کارونه به کوي او خلکو ته به يې ور ښکاره کوي او خلک به ورباندې ګمراه کوي او لکه مخکې چې تېر شول په کور کې يې صرف يوه مور او يو پلار به وي او د هغوی به هم د واده دېرش کاله شوي وي او دده نه بغير به يې بل اولاد نه وي او پدې ځای کې ځينې علماء وايي چې کله د دومره مشهور کيږي او داسې فتنه ترې جوړيږي لدې نه وړاندې به يې مور او پلار مړه شوي وي او پدې وخت کې به ژوندي نه وي دی به يوازې وي .

## دجال څه وخت پيدا کيږي؟

د دجال د پيدا کېدو په اړه هم مختلفې رايې دي خو صحيح احاديث دا تائيد کوي چې هغه به لکه يو عام انسان داسې له مور او پلار نه پيدا کيږي او د مور پلار به يې اولاد نه وي د واده به يې پوره دېرش کاله تېر شي بيا به ترې دا خبيث پيدا شي ..

حضرت عبد الرحمن بن ابي بکرة د خپل پلار نه روايت کوي هغه فرمايي رسول الله ﷺ يې مونږ ته د مور او پلار په اړه هم ووېل رسول الله ﷺ فرمايل :
يَمْكُثُ أَبَوَا الدَّجَّالِ ثَلاثِينَ عَامًا لا يُولَدُ لَهُمَا ، ثُمَّ يُولَدُ لَهُمَا غُلامٌ أَعْوَرُ ،

أَضَرُّ شَيْءٍ ، وَأَقَلُّهُ نَفْعًا ، تَنَامُ عَيْنَاهُ وَلا يَنَامُ قَلْبُهُ " ، ثُمَّ نَعَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَوَيْهِ ، فَقَالَ : " أَبُوهُ رَجُلٌ طُوَالٌ ، ضَرْبُ اللَّحْمُ ، كَأَنَّ أَنْفَهُ مِنْقَارٌ ، وَأُمُّهُ امْرَأَةٌ فِرْضَاخِيَّةٌ ، طَوِيلَةُ الثَّدْيَيْنِ. [1]

ترجمة : د دجال پلار به دېرش کاله صبر وکوي اولاد به يې نه کيږي بيا به يې يو زوی پيدا شي چې په يوه سترګه به ړوند وي ، ضرر به يې زيات او فايده به يې کمه وي ، سترګې به يې ويدې کيږي او زړه به يې نه ويده کيږي ، بيا يې رسول الله ﷺ د مور پلار په اړه وويل پلار به يې اوږد سړی وي ، چاغ به وي ، پوزه به يې لکه مښوکه داسې اوږده وي ، مور به يې چاغه او لويې سينې لرونکې وي سينې به يې اوږدې وي .

نو پدې حديث کې رسول الله ﷺ ښه ښکاره کړه چې په عادي ډول به د مور او پلار نه پيدا کيږي حتی چې د هغوی صفات يې هم ښکاره کړل .

لکن دلته يوه بله رايه هم شته چې هغه اوس هم پيدا شوی دی او په يوه ځای په يوه جزيره کې بند دی او کله چې د الله حکم وشي نو را بهر به شي او پدې اړه د حضرت تميم الداري يو حديث هم موجود دی ... ددې رايې تائيد کونکي وايي چې هغه په يو ځای کې دی چې سوری دی او دا سوری لکه يو تعمير داسې دی او پدې تعمير کې د ننه يو دهليز دی چې انسان پکې ټيټ ټيټ تلی شي تر يو ځايه پورې بيا په آخر کې يې رڼا ده او په همدې سوري کې د ننه يوه چينه ده اوبه ترېنه راوزي او پدې سمڅ (لوی سوری) کې يو وړوکی سوری دی چې سخت باد ترې راوزي او د هغه تېز باد له امله به هېڅوک نشي کولی پدې سوري کې ور ننوزي او دا سوری په کلستان نومي غره کې دی د مخې سره يې کوم نهر هم روان دی او دې

[1] فتن حنبل بن اسحاق

ځای ته هېڅوک نشي ورتللی او دا چې دا خلک ولې نشي پېدا کولی نو ددې رایې تائید کونکي علماء فرمایي چې دا د الله قدرت دی یو شی له خلکو پټولی شي او کله چې د الله خوښه شي بیا به یې را ښکاره کړي علماء فرمایي چې دا غر او دا سوری د خراسان په علاقه کې دي نو بیا هغه احادیث چې وایي دجال به د خراسان د (مرو) له علاقې نه را بهر شي هغه ټول احادیث د همدې رایې تائید کوي .

## حضرت تمیم الداري او هغه ځای

حضرت تمیم الداري لکه مخکې چې تېر شول دی ځای ته ورغلی وو او د همدې ځای د سفر په اراده نه وو تللی بلکه مقصد یې تجارتي سفر وو چې د اسلام نه وړاندې یې کړی وو بیا وروسته په اسلام مشرف شو او جلیل القدر صحابي ورڅخه جوړ شو قصه یې داسې وه چې حضرت تمیم الداري او ورسره ۳۰ کسان د لخم او جذام د قبیلو خلک وو په یو تجارتي سفر روان وو په کښتۍ کې چې نا څاپه ورباندې سخت باد راغلو او د دوی کښتۍ یې د دوی د خپل منزل نه ډېره لرې بل لوري ته یوړه چې هلته یوه جزیره شان ته ځای وو هغه ته دوی ور ښکته شول چې دلته به دمه وکوو او سخت بادونه چې وربانډې لګېدل وو دوی یې خراب کړي وو دوی غوښتل چې دلته به څه دمه هم وکوي او څه ارام به وکوي او ځانونه به بېرته سره سم کړي خو په دې ډله کې هېڅوک هم پدې نه پوهېدل چې دا جزیره ډېره مهمه جزیره ده او دلته دجال دی .

# د دجال سره مخامخ کېدل

اول دوی یو عجیب مخلوق ولیدو چې ګڼ وړ سخت وېښته یې وو او بل ډول شکل یې وو پدې کسانو کې هېچا نشوای معلومولی چې دا به څوک او له کوم ځای نه به وي خو په شکل کې ښځه ښکاره کېده دوی ته یې وویل زه جاسوسه یم دوی یې په مطلب نه پوهېدل خو هغې ورته وویل زه دلته د چا لپاره حالات ګورم او اخبار یې هغه ته ور کوم پدې وخت کې دوی ورته کتل چې هغه د ښځې په شکل کې انسان اوس دسړي په شکل کې شو دوی ورڅخه سم زیات وډار شول او دوی ویل دا شیطان دی بیا یې دوی ته اشاره وکوله چې دا د نهر په غاړه چې موجود دی دې سوري ته د ور ننوزي هلته یو کس دی د دوی انتظار کوي دوی چې له هغه څخه د هرشي پوښتنه کوي هغه په د دوی ځواب ورکړي دوی هلته ننوتل هلته یې یو عجیب مخلوق بل ولیدو په سترګو یې ولید او خبرې یې ورسره وکولې حضرت تمیم الداري فرمایي یو کس وو چې په کړیو سره تړل شوی وو له لاسونو څخه تر غاړې او تر زنګنونو پورې د وسپنې په زنځیرونو تړل شوی وو له دوی نه یې پوښتنه وکوله چې د عربو زندګي څنګه ده ؟ ونې میوې کوي کنه؟ خوراکونه زیات دي که کم؟ چې دوی به ورته ویل : هو نو هغه به خفه کېدو او د طبریا د بحر پوښتنه یې وکوله چې اوبه پکې شته کنه نو چې دوی ورته وویل : هو هلته خو ډېرې اوبه دي نو زیات خفه شو ویل کاش د هغه اوبه وچې شي او ختمې شي بیا یې د یو ښار زغر پوښتنه وکوله چې د شام د قبلې لوري ته پروت دی ویل د هغه ځای خلک د چینو په اوبو کښت کوي؟ ... پدې ټولو پوښتنو کې به چې په هو! باندې ځواب ورتلو هغه به خفه کېدو ده په ټولو پوښتنو کې غوښتل چې معلوم کړي چې دده وتلو ته څومره وخت پاتې دی نو چې کله به پوهېدو چې دا هرڅه په هو سره

ځواب کیږي نو زما د راتلو وخت لا نه دی راغلی..

بیا یې دوی ته وویل : ښه په عربو کې نبي الامین راغلو کنه ؟ څه یې وکول ؟ دوی ورته وویل : هغه په مکه کې را پیدا شو بیا مدینې منورې ته مهاجر شو او بېرته راغلو .. ده ورته ویل عربو ورسره جنګونه وکول؟ دوی ورته وویل هو ... بیا یې په سختي پوښتنه تري وکوله چې سم رښتیا راته ووایاست هغه جنګونه به څنګه وو؟ دوی ورته وویل : هغه پیغمبر په جنګونو کې بالآخره کامیاب شو اوس یې دعوت خپور شو او د عربو اکثرو خلکو د هغه متابعت او اطاعت وکولو ..

هغه بیا ورته وویل : اوس یې هم اطاعت کوي؟ دوی ورته وویل هو ... دجال ورته وویل : چې اطاعت یې وکوي د عربو لپاره غوره ده (عجیبه ده یوه لویه فتنه د خیر خبره کوي؟) ... او حضرت تمیم الداري فرمایي یو دم یې بیا اواز وکولو زه مسیح یم زر دی چې زما لپاره به د وتلو اجازه وشي او زه به په ټوله دنیا کې را وګرځم او یو کلی به پرې نه ږدم مګر وربه شم په ٤٠ شپو کې بغیر د مکې او مدینې څخه هغه دواړه په ما باندې حرامې کړل شوې دي او که زه دوی ته ور ننوتل غواړم نو په مخه کې راته ملکه دریږي چې په توره مې ورڅخه منع کوي . **و الله اعلم**

نو د حضرت تمیم الداري د پورتنۍ واقعې څخه پنځه خبرې په لاس راځي .

١. دجال اوس موجود دی او د رسول الله ﷺ تر بعثت وړاندې پیدا شوی دی او کلک کلک تړل شوی دی .

۲. سره ددې چې دجال په يو ځای کې دی چې په پورته واقعه کې يې ډېرې نښې تېرې شوې لکن هېڅوک هلته رسېدلی نشي چې هغه را خلاص کړي ترڅو چې هغه وخت رانشي چې الله ورته مقرر کړی وي تر هغه وخته نه وروسته کيږي اونه مخکې کېدلی شي .

۳. د دجال له راتلو مخکې داسې نښې دي چې ده ته هم ور ښودل شوې دي ځکه خو يې د هغه نښو پوښتنه د حضرت تميم الداري او د هغه له ملګرو څخه کوله چې د عربو د زمکې وچېدل او د ميوو حاصلات کمېدل او د بحيرة الطبرية وچېدل او داسې نور .

٤. مکه او مدينه له دجال څخه خلاصې دي دلته به نشي ورتلی او دلته ورتلل په ده باندې حرام شوي دي په ځينې رواياتو کې بيت المقدس هم راغلی دی .

٥. له همدې دجال سره د حضرت تميم الداري خبرې د هغه د اسلام سبب شوې او لدې سفر نه وروسته په اسلام مشرف شو او جليل القدر صحابي شو .

خو دلته پوښتنه داده که دا کس دجال وي نو دلته چا بند کړی دی؟

ددې په اړه علماء فرمايي دا ملائکو دلته بند کړی دی او ځينې علماء فرمايي دا حضرت سليمان بند کړی دی چې کله يې وخت راشي د الله په حکم به راخلاص شي خو پدې اړه داسې قوي دليل نشته چې انسان ورباندې تکيه وکوي.

# ددجال متابعت به څوک کوي؟

هغه کسان چې د دجال ملګرتيا به کوي هغوی مختلف ډولونه کسان دي رسول الله ﷺ فرمايل : د دجال اکثر متابعت کونکي يهود او ښځې دي دجال به مدينې منورې ته نشي ور ننوتلی بلکه د مدينې منورې سره نيږدې په يوه وادي کې واړوي او په مدينه منوره کې چې څومره منافقين دي هغه به ټول ورته را بهر شي (دا خبره مخکې تيره شوه) پدې را وتونکو خلکو کې به اکثر ښځې وي تردې چې يو سړی به خپل کور ته لاړ شي خپله ښځه ، خپله مور ، خور ، لور او عمه به کلکه وتړي ددې له ډاره چې دجال ته ورنشي يعني يو مسلمان به لدې نه ډاريږي چې د کور ښځې يې دجال ته ورنشي او په هغه باندې به ايمان راوړي او د هغه په فتنه کې به واقع شي نو ځکه به يې وتړي او دا چې د دجال متابعت به څوک کوي رسول الله ﷺ مخکې وفرمايل چې يهود به يې اکثر متابعت کونکي وي او په يو بل حديث کې رسول الله ﷺ يهود هم ښودلې چې له کومه ځايه به وي حضرت انس بن مالک فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **يَخْرُجُ الدَّجَّالُ مِنْ يَهُودِيَّةِ أَصْبَهَانَ ، مَعَهُ سَبْعُونَ أَلْفًا مِنْ الْيَهُودِ ، عَلَيْهِمْ الطيالسه** .[1]

ترجمة : دجال به د اصفهان له يهودو څخه راوزي او له ده سره به اويا زره يهود وي چې د طيالسې په نوم جامې به يې اچولې وي په يو قول کې د الطيالسة په ځای التيجان ټکی راغلی دی .

اصفهان خو معلوم دی چې په ايران کې دی اوس دا د اصفهان يهود څوک دي؟ اوس په ايران کې

---

[1] **رواه مسلم**

يـهـود شـتـه؟ د رسـول الله ﷺ پـه قـول كـې هېڅ شک نـشـتـه هغـه رښـتـيـا ويـلـي دي څـنګـه چې هغـه ويـلـي دي همـا غـه شـان بـه كـيـبږي عـلـمـا وو چې اوس څېړنـې كړې دي نـو هغوی فـرمـايـي چې پـه ايـران كـې اوس يـهـود شـتـه چې پـه طـهـران ، همـدان او اصفـهـان كـې مـيـشت دي او د ۲۵۰۰۰ نـه تـر ۳۰۰۰۰ پـورې نـفـوس لـري او د اصفـهـان ولايت پـه ايـران كـې يـو لـه دېـرشو ولايـاتـو څخه دی او د ايـران پـه زړه كـې واقع دی د طـهـران نـه د ۳٤۰ كـيـلـو مـتـر پـه فـاصله كـې د شمـال لـور تـه پـروت دی او رسول الله ﷺ همـدا ځـای يـاد كړی چې د دجـال سره بـه اويـا زره كسان را بـهـر شي چې طيـالسې جـامـې (يـو ډول جـامـه ده لـكـه ځـيـنـې واړه څـادر دسـتـمـالـونـه چې پـه دواړو اوږو بـانـدې بـه خـلـک اچـوي او د شا لـه طرف نـه اوږې پـكـې پـټـې شي او دواړه طرفـونـه يـې د آغوسـتـونـكـي مخې تـه شي او شمـلـې لـرې لـكـن لـه واړه څـادر سره يـې دا فـرق وي چې پـه دې كـې پـه يـو طرف كـې ډيـزايـن شوی وي چې هغـه ځـای يـې آغوسـتـونـكـی خـپـلـې غاړې تـه بـرابـروي د لـغـت عـلـمـاء د الـطـيـالـسة پـه مـعـنی كـې فـرمـايـي : **نوع من اللباس على الكتف يزين البدن كله** يـعـنـي يـو ډول جـامـه ده چې پـه اوږو اچـول كـيـبږي او ټـول بـدن ښـكـلـی كـوي) .

لـكـه مـخـكـې چې مـا وويـل : رسـول الله ﷺ چې هرڅه ويـلـي دي هغـه بـه كـيـبږي رسول الله ﷺ نـورې هم ډيـرې پـيـشـګـويـانـې كړې دي او هغـه ټـولـې سل پـه سـلـو كـې رښـتـيـا شوي دي داسې بـه دا هم رښـتـيـا شي .

د د جـال مـتـابـعـت بـه يـهـود ، زنـانـه او ځـيـنـې نـور خـلـک كـوي چې رسول الله ﷺ يـې پـه اړه فـرمـايـلـي دي چې **يتبعه أقوام كأن وجوهم المجان المطرقة أو المطّرقة** (تـرجـمـة : مـتـابـعـت بـه يـې داسې قـومـونـه كـوي چې مخونـه بـه يـې لـكـه هغـه ډالـونـه داسې وي چې پـوښ وركړل شوی

وي يعني ګرد او له غوښې نه ډک به وي) علماء فرمايي چې اکثر دا خلک په عجمو کې وي او په ترکانو کې داسې خلک وي او په ځينې رواياتو کې ورسره دا هم راغلي چې د دجال متابعت کونکي به يو ډول خلک وي چې پوزې به يې پيتې پيتې او وړې وړې وي او همدارنګه ځينې عرب قبيلې به هم وي چې ددجال متابعت به وکوي او د هغه سره به همکاري کوي.

لکه ددې بحث په سر کې چې تېر شول چې د دجال اکثر مرستندوی خلک به يهود وي او دی به خپله هم يهودي وي او ددپنه دا ښکاره کيږي چې تر قيامت پورې به يهود په زمکه کې موجود او ددې وخت په انتظار به وي چې په دنيا باندې واکمني تر لاسه کړي او لکه چې مونږ مسلمانان ددې عقيده لرو چې په آخر وخت کې به مسيح الدجال را وزي داسې دوی وايي چې د هغه نوم مسح ابن داود دی او هغه به په آخره زمانه کې راوزي او د دنيا بادشاهي به هغه ته ورکوله کيږي او هغوی د همدې انتظار کوي چې هغه به راشي بيا به د دوی واکمني شي او پدې توګه به په مسلمانانو باندې غالب شي نو ددې امله علماء فرمايي چې يهود که په هره جامه کې وي او که په هر نوم د مسلمان سره مخامخ کيږي مسلمان يې بايد له دوستي څخه ځان وساتي ځکه هغه د مسلمانانو دوستان نشي کېدلی او که په موقت ډول سره کوم يهودي لتا سره ښه رويه کوي پدې کې به د هغه څه مقصد وي د هغه لپاره به کار کوي .

بل رسول الله ﷺ ښکاره کړه چې ښځې به د دجال په متابعت کونکو کې زياتې وي د هغې وجه به صرف دا وي چې هغوی به په ديني علم کې د کمې برخې خاوندانې وي او ددې نقصان له امله به هغوی د دجال په فتنه کې واقع کيږي او ګمراه کيږي به ددې امله بايد هر مسلمان د خپل کور د ښځو

دیني تربیه چې د هغوی له تربیې سره بیا راتلونکی نسل ټول په هماغه تربیه باندې تربیه کیږي خپل مسئولیت او وظیفه و ګڼي او پکې زیار وباسي لکه داسې چې د دجال د راتلو په وخت کې ورځخه دومره لویه فتنه پیدا کیږي په همدې ډول په روزانه ژوند کې هم له دین ځخه د ښځو د نه خبر له امله ډېر شرونه او نقصانونه پیدا کیږي .

همدارنګه هغه کسان چې په علمي لحاظ کمزوري وي که نارینه وي که ښځینه ډېر زر او په اسانه سره بې لارې کیږي په اوس وخت کې هم ښکاره کیږي هغه کسان چې خلک بې لارې کول غواړي په یو نوم او بل نوم خلک په ځان ور ټولول غواړي اول یې هغه کسان متابعت کوي چې هغوی له اسلامي معلوماتو ځخه بې برخې وي ، هغه کسان یې اول متابعت کوي چې په آخرت کې د خپل ژوند په اړه ځه فکر نه کوي او د هغوی لوی مقصد په دنیا کې ښه ژوند کول وي هغه کسان چې د اسلامي خدمت جذبه په زړه کې ولري ورته په کار دي چې خپل لږ وخت هغه خپلوانو او دوستانو ته ورکړي چې هغوی دیني معلومات کم ولري او یا یې بالکل ونلري او له هغوی سره مرسته وکوي چې دیني معلومات یې زیات شي .

## دجال ځه وخت راوزي؟

د دجال د راتلو معین وخت بغیر د خالق ذات نه بل هېچا ته معلوم نه دی او پدې اړه چې ځومره معلومات دي هغه مونږ ته له رسول الله ﷺ ځخه را نقل شوي دي او هغه ﷺ مونږ ته د دجال معین وخت نه دی را ښودلی نو ځکه مونږ هم د هغه وخت په اړه ځه نشو ویلی خو رسول الله ﷺ تر هغه

وړاندې څه نښې يادې کړې دي چې زه يې لتاسې سره شريکوم .

١. رسول الله ﷺ فرمايل : **تغزون جزيرة العرب ، يفتحها الله ، ثم تغزون فارس ويفتحها الله ، ثم تغزون الروم فيفتحها الله ، ثم تغزون الدجال فيفتحها الله.** [1]

ترجمة : د جزيره عرب سره به جنګ کوئ الله به يې فتح کړي ، بيا به له فارس سره جنګ کوئ الله به يې فتح کړي بيا له روم سره جنګ کوئ الله به يې فتح کړي بيا به له دجال سره جنګ کوئ الله به يې فتح کړي .

ددې حديث په تفسير کې ملا علي قاري فرمايي : **تغزون جزيرة العرب** معنى يې داده چې تاسې به د پاتې عربو سره زما نه وروسته جنګ وکوئ ترڅو په مکه مدينه يمامه او يمن کې هېڅ کافر پاتې نشي. [2]

علماء وايي : په پورتني حديث کې رسول الله ﷺ څلور شيان ذکر کړي دي په ترتيب سره صحابه وو ته فرمايي تاسې به د جزيرة العرب سره جنګ کوئ همداسې وشول صحابه وو د رسول الله ﷺ په ژوند کې د عربو سره ډېر جنګونه وکول تردې چې رسول الله ﷺ وفات شوی نه وو او د عربو زياته برخه د اسلام په دائره کې راغلې وه او له هر ځای نه به رسول الله ﷺ ته وفدونه راتلل نو الله فتح کړه د رسول الله ﷺ اوله خبره په همدې ځای باندې پوره شوه .

---

1 رواه مسلم
2 مرقاة المصابيح

بیا صحابه وو د فارس لوري ته مخه کړه له هغوی سره یې جنګونه وکول تردې چې الله فتح مسلمانانو ته ورکړه بیا یې د روم له بلادو سره جنګونه وکول هغه هم ختم شول ددې کتاب نه په مخکني کتاب کې یې څه واقعې تېرې شوې دي هغه هم الله فتح کړل او ددېنه وروسته به د دجال سره د جنګ نمبر راځي .

۲. حضرت معاذ بن جبل فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **عِمْرَانُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ خَرَابُ يَثْرِبَ وَخَرَابُ يَثْرِبَ خُرُوجُ الْمَلْحَمَةِ وَخُرُوجُ الْمَلْحَمَةِ فَتْحُ قُسْطَنْطِينِيَّةَ وَفَتْحُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ خُرُوجُ الدَّجَّالِ.** [1]

ترجمة : د بیت المقدس ابادي د یثرب خرابي ده (هغه وخت چې بیت المقدس ښه اباد شي او زیات خلک پکې پیدا شي دا هغه وخت دی چې یثرب به خرابیږي ) او د یثرب خرابي د لوی جنګ واقع کېدل دي (یعني کله چې یثرب خراب شي نو په هغه وخت کې به لوی جنګ واقع شي) او لوی جنګ واقع کېدل د قسطنطینیة فتح ده (کله چې لوی جنګ واقع شي قسطنطینیة به فتح شي ) او د قسطنطینیة فتح د دجال را وتل دي (کله چې قسطنطینیة فتح شي دجال به راوزي) .

پدې حدیث کې رسول الله ﷺ څه لویې واقعې سره تړلې دي چې دا به یوه په بله پسې واقع کیږي خو بیا هم له حدیث نه دا نه ښکاره کیږي چې دا به سره سریښ وي نو علماء فرمایي کېدای شي چې ددې هرو دوو حادثو په مینځ کې د اوږده زمانه موجوده وي .

په ابي داود کې ددې حدیث نه وروسته د عون المعبود مصنف لیکي: **لما كان بيت المقدس باستيلاء الكفار**

[1] رواه ابو داود و حسنه الالباني

عليه وكثرة عمارتهم فيها أمارة مستعقبة بخراب يثرب ، وهو أمارة مستعقبة بخروج الملحمة ، وهو أمارة مستعقبة بفتح قسطنطينية ، وهو أمارة مستعقبة بخروج الدجال . جعل النبي صلى الله عليه وسلم كل واحد عين ما بعده وعبر به عنه . قال وخلاصته : أن كل واحد من هذه الأمور أمارة لوقوع ما بعده ، وإن وقع هناك مهملة . [1]

ترجمة :څرنګه چې به داسې وخت راځي چې په بيت المقدس باندې به د کفارو واکمني راځي او هلته به تعميرونه او ابادي زياتيږي دا به يوه داسې نښه وي چې ورپسې به د يثرب خرابي راځي او هغه يوه نښه ده چې ورپسې به لوی جنګ راځي (چې علماء فرمايي دا به د نصاراوو او مسلمانانو په مينځ کې وي) او دا جنګونه به علامه وي ورپسې به د قسطنطينية فتح راځي او هغه به ددې نښه وي چې وروسته به پسې د دجال راوتل راځي په حديث کې رسول الله ﷺ هره حادثه د بلې لپاره نښه ياده کړېده نو خلاصه يې داده چې دا هره لويه حادثه د بلې لپاره نښه ده او دا يوه به بله پسې راځي اګر که په مينځ کې به يې داسې وخت هم وي چې همداسې مهمل به تيريږي يعني ضروري نه ده چې دا ټولې حادثې به سر په بله پسې متصلې راځي .

٣. حضرت عبد الله بن عمر فرمايي : **كُنَّا قُعُودًا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ فَذَكَرَ الْفِتَنَ فَأَكْثَرَ فِي ذِكْرِهَا حَتَّى ذَكَرَ فِتْنَةَ الْأَحْلَاسِ فَقَالَ قَائِلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَا فِتْنَةُ الْأَحْلَاسِ قَالَ هِيَ هَرَبٌ وَحَرْبٌ ثُمَّ فِتْنَةُ السَّرَّاءِ دَخَنُهَا مِنْ تَحْتِ قَدَمَيْ رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يَزْعُمُ أَنَّهُ مِنِّي وَلَيْسَ مِنِّي وَإِنَّمَا أَوْلِيَائِي الْمُتَّقُونَ ثُمَّ يَصْطَلِحُ النَّاسُ عَلَى رَجُلٍ كَوَرِكٍ عَلَى ضِلَعٍ ثُمَّ فِتْنَةُ الدُّهَيْمَاءِ لَا تَدَعُ أَحَدًا مِنْ هَذِهِ الْأُمَّةِ إِلَّا لَطَمَتْهُ لَطْمَةً فَإِذَا قِيلَ انْقَضَتْ تَمَادَتْ يُصْبِحُ الرَّجُلُ فِيهَا مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا حَتَّى يَصِيرَ النَّاسُ إِلَى فُسْطَاطَيْنِ**

[1] عون المعبود

فُسْطَاطِ إِيمَانٍ لَا نِفَاقَ فِيهِ وَفُسْطَاطِ نِفَاقٍ لَا إِيمَانَ فِيهِ فَإِذَا كَانَ ذَاكُمْ فَانْتَظِرُوا الدَّجَّالَ مِنْ يَوْمِهِ أَوْ مِنْ غَدِهِ. .[1]

ترجمة : مونږ له رسول الله ﷺ سره ناست وو نو فتنې یې یادې کړې بیا یې د فتنې په یاد کې څه ډېرې خبرې وکولې تردې چې د احلاس فتنه یې یاده کړه (احلاس هغه ټوټې ته ویل کیږي چې په اوښ باندې د هغه تر زین لاندې پرته وي او دې فتنې ته یې د احلاس فتنه ددې امله وویله چې دا به هم له خلکو سره سریښ وي او تر ډېره وخته به ترېنه نه جدا کیږي او اوږد دور به یې وي) یو چا ترې پوښتنه وکوله یا رسول الله ﷺ دا د احلاس فتنه څه شی ده؟ رسول الله ﷺ وفرمایل دا داسې فتنه ده چې پدې کې به خلک یو له بل څخه تښتي (ځکه یو له بله به یې نفرت کیږي) او د چور فتنه ده پدې کې به خلک د خلکو مالونه چور کوي (حرب هغه چور ته ویل کیږي چې له چا څخه د هغه ټول مال واخلې او ده ته هېڅ هم پاتې نشي او د یو قول مخې حرب دېته ویل کیږي چې د چا اهل او مال هرڅه د هغه د لاسه بهر شي) بیا به د السراء فتنه راشي دا هغه فتنې ته وایي چې له انسان څخه پکې صحت ، عافیت ، خوشحالي لاړه شي (دیته د السراء فتنه ځکه ویل شویده چې دا اکثر د انسان د پټو ګناهونو څخه راځي او یا ددې وجې نه ورته د السراء فتنه ویل شویده چې په چا کې دا فتنه راشي نو دښمن یې پرې خوشحالیږي) او دا زما تر قدم د لاندې ځای نه به زما د اهل بیت د یو سړي نه به پورته شي هغه به دا ګمان کوي چې زما له ډلې څخه دی لکن هغه به زما له ډلې (یعني زما له تابعدارانو او متابعینو) څخه به نه وي بېشکه زما دوستان متقین دي بیا به هغوی په یو کس سره صلح وکوي

[1] روه ابو داود و صححه الالباني

او په یو کس باندې به راتول شي پداسې توګه چې ثبات او قیام به نه وي بیا به الدهیماء (تکه توره یعني زیاته توره چې هېڅوک پکې په اسانه سره لاره نشي پیدا کولی) فتنه را ښکاره شي هغه به پدې امت کې هېڅوک هم پرې نه ږدي مګر څپېړه به ورکړي څومره چې خلک ګمان کوي چې دا فتنه ختمه شوه همدومره به هغه اوږدیږي په هغه فتنه کې به داسې وخت راشي چې یو انسان به په سحر کې مسلمان او په بیګاه کې کافر وي تردې چې خلک به په دوه ډلو تقسیم شي یوه ډله به د ایمان وي چې هېڅ ډول نفاق به پکې نه وي او بله ډله به د نفاق وي چې هېڅ ایمان به پکې نه وي کله چې داسې وخت دربانديې راغلو نو بیا د دجال انتظار په همدې ورځ کوئ او یا یې ددې ورځې په صباء کوئ .

٤. رسول الله ﷺ تر دجال وړاندې مونږ ته د څه واقعاتو خبر راکوي چې د مسلمانانو او عیسایانو په مینځ کې به څه جنګونه کیږي او په آخره کې به کامیابي د مسلمانانو په برخه وي او بیا به د هغه نه وروسته دجال را ښکاره کیږي رسول الله ﷺ فرمایي : **سَتُصَالِحُونَ الرُّومَ صُلْحًا آمِنًا، فَتَغْزُونَ أَنْتُمْ وَهُمْ عَدُوًّا مِنْ وَرَائِكُمْ، فَتُنْصَرُونَ، وَتَغْنَمُونَ، وَتَسْلَمُونَ، ثُمَّ تَرْجِعُونَ حَتَّى تَنْزِلُوا بِمَرْجٍ ذِي تُلُولٍ، فَيَرْفَعُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ النَّصْرَانِيَّةِ الصَّلِيبَ فَيَقُولُ: غَلَبَ الصَّلِيبُ، فَيَغْضَبُ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، فَيَدُقُّهُ، فَعِنْدَ ذَلِكَ تَغْدِرُ الرُّومُ، وَتَجْمَعُ لِلْمَلْحَمَةِ.** [1]

ترجمة : تاسې به له رومیانو سره صلح وکوئ د امن تاسې به غزا کوئ او هغوی به ستاسې دښمنان ستاسې تر شا وي تاسې به کامیاب کیږئ او تاسې به غنیمتونه اخلئ او په امن به را ګرځئ تردې چې تاسې مرح ذي تلول ته راشئ (د ځای نوم دی) یو نصراني به صلیب پورته کړي او وبه وایي

---

[1] رواه ابو داود و ابن ماجة

صليب کامياب شو يو مسلمان به غصه شي صليب به مات کړي روميان به په صلح کې غدر وکوي او د يو لوی جنګ تياری به وکوي .

په ځينې رواياتو کې دلته داسې الفاظ نور هم راغلي چې د مسلمانانو يوه ډله به خپلې سلاح ته ور ټوپ کړي او جنګ به شروع کې الله به ورته په شهادت باندې عزت ورکړي .

ددې حديث په تشريح کې علماء فرمايي چې کله مسلمانان له نصاراوو سره صلح کوي اوس معلومه نه ده چې دوی به په شريکه له چا سره جنګ کوي؟ داسې به څوک وي چې د نصاراوو او مسلمانانو شريک دښمن وي؟ او ځينې علماء فرمايي چې معنی يې داده چې تاسې به له خپل دښمن سره جنګ کوئ او نصارا به له خپل دښمن سره جنګ کوي او دا يې معنی نه ده چې دواړه به په شريکه د کومې دريمې ډلې سره جنګ کوئ او بېرته به تاسې يو ځای ته ددمې لپاره راځئ او تاسې به له يو بل څخه نه ډارېږئ ځکه د تاسې په مينځ کې به صلح شوې وي خو هلته چې کله يو عيسوي صليب پورته کړي او چغه کړي چې صليب کامياب شو نو يو مسلمان ته به غصه ورشي هغه به مات کړي پدې سره به نصارا د مسلمانانو په خلاف د جنګ تياری وکوي او د يو لوی جنګ تياری به وشي هغه جنګ به وشي او عيسايان به پکې ماتې وخوري .

ددې جنګ تفصيل هم راغلی دی رسول الله ﷺ فرمايي : **لاَ تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَنْزِلَ الرُّومُ بِالأَعْمَاقِ أَوْ بِدَابِقَ فَيَخْرُجُ إِلَيْهِمْ جَيْشٌ مِنَ الْمَدِينَةِ مِنْ خِيَارِ أَهْلِ الأَرْضِ يَوْمَئِذٍ فَإِذَا تَصَافُّوا قَالَتِ الرُّومُ خَلُّوا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الَّذِينَ سَبَوْا مِنَّا نُقَاتِلْهُمْ. فَيَقُولُ الْمُسْلِمُونَ لاَ وَاللَّهِ لاَ نُخَلِّى بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ إِخْوَانِنَا. فَيُقَاتِلُونَهُمْ فَيَنْهَزِمُ ثُلُثٌ لاَ يَتُوبُ اللَّهُ عَلَيْهِمْ أَبَدًا وَيُقْتَلُ ثُلُثُهُمْ أَفْضَلُ الشُّهَدَاءِ عِنْدَ اللَّهِ وَيَفْتَتِحُ الثُّلُثُ لاَ يُفْتَنُونَ أَبَدًا فَيَفْتَتِحُونَ قُسْطُنْطِينِيَّةَ فَبَيْنَمَا هُمْ يَقْتَسِمُونَ الْغَنَائِمَ قَدْ عَلَّقُوا سُيُوفَهُمْ بِالزَّيْتُونِ إِذْ صَاحَ فِيهِمُ**

الشَّيْطَانُ إِنَّ الْمَسِيحَ قَدْ خَلَفَكُمْ فِى أَهْلِيكُمْ. فَيَخْرُجُونَ وَذَلِكَ بَاطِلٌ فَإِذَا جَاءُوا الشَّأْمَ ... الحديث .[1]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو د روميانو لښکرې اعماق او دابق ځاى ته راشي او په دې وخت کې به مدينې منورې د غوره خلکو نه يو لښکر وربهر شي کله چې له يو بل سره مخامخ شي روميان به ورته ووايي مونږ هغه کسانو ته ورپرېږدئ چې بنديان نيول شوي دي مونږ له هغوى سره جنګ کوو (مخکې به مسلمانانو له روميانو سره جنګونه کړې وي او له هغوى نه به يې څه اسيران نيولي وي او هغه بنديان به اوس مسلمانان شوې وي او د مسلمانانو په لښکر کې به داخل شوي وي اوس به روميان هغه کسان له دوى نه غواړي چې هغه مونږ ته راکړئ ) مسلمانان به ورته وايي نه والله مونږ تاسې ته خپل ورونه په لاس نه درکوو (اوس هغه مسلمانان شوي دي او په اسلام سره هغه زمونږ ورونه شوي دي) لدې سره به جنګ شروع شي په مسلمانانو کې به يوه دريمه برخه ماتې وخوري و به تښي الله به د هغوى توبه بيا کله هم قبوله نه کړي (د جنګ نه تېښته په اسلام کې لويه ګناه ده او دوى به بيا لدې ګناه توبه ونه باسي) او يوه دريمه برخه به په شهادت ورسيږي او دا به د الله په وړاندې ډېر غوره شهيدان وي او بله دريمه به فتح تر لاسه کړي هغوى به کله هم په فتنه کې رانشي هغوى ته به فتوحات وکوي تردې چې قُسْطُنْطِينِيَّةَ فتح کړي پدې وخت کې چې دوى غنميتونه تقسيم کوي تورې يې په زيتون کې را ځړولې وي چې شيطان په دوى کې اواز وکوي ستاسې کورونو ته دجال راغلى دى مسلمانان به زر را روان شي او دا به درواغ وي شيطان به هسې په درواغو دوى ته دا اواز کړى وي صرف ددې لپاره چې دوى وډار

[1] صحيح مسلم

کړي کله چې مسلمانان شام ته راشي نو بیا به دجال په رښتیا را پیدا شي ..

علماء فرمایي چې پدې پورتني جنګ کې به د مسلمانانو مشري حضرت مهدي کوي او پدې جنګ کې به د عیسایانو لښکر ډېر زیات وي چې ۸۰ بیرغونه به یې وي او تر هر بیرغ لاندې به په منظمه توګه ۱۲۰۰۰ دولس زره کسان وي چې دا ټول ۹٦۰۰۰۰ نه لکه شپېته زره کسان جوړیږي او همدومره لوی لښکر ته به مسلمانان ماتې ورکړي نو ځکه په احادیثو کې دېته لویه جګړه ویل شویده .

امام بن کثیر فرمایي : دجال ته به په آخره زمانه کې د قُسْطُنْطِينِيَّةَ د فتح نه وروسته د راوتلو اجازه ورکړله شي او د راوتلو شروع به یې له اصفهان څخه وي له یوې علاقې نه چې یهودیة به ورته ویله کیږي او دده مرسته به اویا زره یهودیان کوي چې سلاح او ډالونه به ورسره وي او شنه طیالسي (یو ډول جامه ده لکه څادر په اوږو اچول کیږي او انسان ورسره ښه او درونډ ښکاره کیږي یهودیان یې اوس هم د عبادت په ځایونو او نورو مراسمو کې په اوږو اچوي) همدارنګه اویا زره کسان تتاریان او د خراسان خلک به ورسره وي اول به د ظالم بادشاه په شکل کې را ښکاره شي بیا به د نبوت دعوه وکوي او بیا به وروسته د ربوبیت دعوه وکوي پدې حالت کې به هم ځینې جاهلان نا پوه او د باندېو خلک له اسلامي معلوماتو څخه لرې ټول خلک به یې متابعت وکوي صرف هغه کسان به یې مخالف وي چې الله ورته د سمې لارې هدایت کړی وي په ټوله دنیا به وګرځي او ښارونه به کلي په کلي فتح کړي د مکې او

مدینې منورې نه بغیر به بل داسې ځای پاتې نشي چې دی ورنشي .[1]

## د دجال فتنه

لکه مخکې چې تېر شول د دجال سر به شیطانان په ډېرو کارونو کې مرسته کوي او مخکې تېر شول چې رسول الله ﷺ فرمایل : له کومه وخته چې دا دنیا پیدا کړل شوېده الله تر دجال بله لویه فتنه نه ده پیدا کړې ځکه له ده سره به خارق العادة او عجیب قدرتونه وي هغه مخکنی مطلب رسول الله ﷺ په یو بل حدیث کې په بدلو الفاظو سره اداء کړی دی رسول الله ﷺ فرمایي : **ما بين خلق آدم إلى قيام الساعة خلق أكبر من الدجّال.**[2]

ترجمة : د حضرت آدم د پیدائښت او د قیامت په مینځ کې تر دجال بله لویه فتنه نشته .

---

[1] البداية و النهاية
[2] صحيح مسلم

## له دجال سره به جنت او دوزخ وي

پدې اړه مخکې هم روایت تېر شو چې دجال به ځان ته رب وایي او له ځان سره به جنت او دوزخ ګرځوي حضرت حذیفة فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **الدَّجَّالُ أَعْوَرُ الْعَيْنِ الْيُسْرَى ، جُفَالُ الشَّعَرِ - كَثِيرُهُ - مَعَهُ جَنَّةٌ وَنَارٌ فَنَارُهُ جَنَّةٌ وَجَنَّتُهُ نَارٌ.** [1]

ترجمة : دجال په چپه سترګه ړوند دی او ګڼګوتي وېښتان یې دي وېښتان به یې زیات وي له ده سره به جنت او دوزخ وي خو دده په سترګو ښکاره کېدونکی دوزخ په اصل کې جنت دی (څوک چې دی دوزخ ته وغورځوي الله به هغه جنت ته بیایي) او دده جنت دوزخ دی (هغه کسان چې دده متابعت وکوي او دی یې جنت ته بوزي نو هغه به الله په دوزخ کې اچوي) .

## دوه نهرونه

له دجال سره به دوه نهرونه وي په یو نهر کې به خالصې اوبه وي او په بل کې به په سترګو ښکاره کېدونکې د اور سختې او لویې لمبې وي حضرت حذیفة فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **لأَنَا أَعْلَمُ بِمَا مَعَ الدَّجَّالِ مِنْهُ : مَعَهُ نَهْرَانِ يَجْرِيَانِ أَحَدُهُمَا رَأْيَ الْعَيْنِ مَاءٌ أَبْيَضُ وَالآخَرُ رَأْيَ الْعَيْنِ نَارٌ تَأَجَّجُ ، فَإِمَّا أَدْرَكَنَّ أَحَدٌ فَلْيَأْتِ النَّهْرَ الَّذِي يَرَاهُ نَارًا وَلْيُغَمِّضْ ثُمَّ لْيُطَأْطِئْ رَأْسَهُ فَيَشْرَبَ مِنْهُ فَإِنَّهُ مَاءٌ بَارِدٌ.** [2]

ترجمة : زه په هغه څه خبر یم چې له دجال سره به وي له هغه سره به دوه نهرونه وي چې چلیږي به یو به یې په سترګو ښکاره کیږي سپینې اوبه به وي او بل به یې په سترګو ښکاره کیږي چې

---
[1] رواه مسلم
[2] رواه مسلم

لمبې وهونکی اور به وي که پتاسې کې څوک هغه ته ورغلل چې هغه اور دی نو سترګې د ورته پټې کړي او بیا د سر ورته ښکته کړي او څښاک د تریخه وکوي بېشکه هغه یخې اوبه دي (دده د سحر او جادو له امله خلکو ته هغه اور ښکاره کیږي) .

## دده په امر به باران کیږي

هغه کسان چې دده متابعت وکوي په هغوی باندې به باران کیږي فصلونه به یې ښه کیږي حضرت نواس بن سمعان فرمايي رسول الله ﷺ له صحابه وو سره ددجال په اړه خبرې کولې اوږد حديث دی په یو ځای کې یې فرمايي : يَأْتِي عَلَى الْقَوْمِ فَيَدْعُوهُمْ فَيُؤْمِنُونَ بِهِ وَيَسْتَجِيبُونَ لَهُ ، فَيَأْمُرُ السَّمَاءَ فَتُمْطِرُ ، وَالأَرْضَ فَتُنْبِتُ ، فَتَرُوحُ عَلَيْهِمْ سَارِحَتُهُمْ - الماشية - أَطْوَلَ مَا كَانَتْ ذُرًا - الأعالي والأسنمة - وَأَسْبَغَهُ ضُرُوعًا ، وَأَمَدَّهُ خَوَاصِرَ - كناية عن الامتلاء وكثرة الأكل ... الحديث .[1]

ترجمة : هغه به په یو قوم باندې راشي هغوی به خپل متابعت ته را وغواړي هغوی به په ده باندې ایمان راوړي او دده خبره به ومني دی به اسمان ته امر وکوي په هغوی باندې به باران وشي زمکه به یې شنه شي د دوی حیوانات چې دوی ته له صحرا څخه راشي (په کوم ځای کې چې مال خوراک کوي) نو چاغ چاغ به وي او بوکامونه به یې لوړ شوي وي (غوښه او وازده به پکې ډېره شوې وي) غولانځې به یې ډکې شوې وي (کوم حیوانات چې شودې ورکوي په هغوی کې به ډېرې شودې وي) او ګېډې به یې ډکې وي .

یعني له هره اړخه به دوی ته تازګي ښکاره کیږي او دوی ته به ځان له هره اړخه په فایده کې

[1] رواه مسلم

ښکاره کيږي له اسمان څخه به باران پرې کيږي او له زمکې نه به نباتات زيات را شنه شي او مالونه به يې هم چاغ او هم ښې شودې ورکونکي شي .

## دده په امر به سختي راځي

کوم کسان چې دده نا فرماني وکوي او دده متابعت ونه کوي په هغوى باندې به سختي راځي او باران به ورڅخه بنديږي او تکليفونه به پرې راځي په همدې پورتني حديث کې مخکې رسول الله ﷺ فرمايي : ثُمَّ يَأْتِي الْقَوْمَ ، فَيَدْعُوهُمْ ، فَيَرُدُّونَ عَلَيْهِ قَوْلَهُ ، قَالَ : فينصرف عَنْهُمْ ، فَيُصْبِحُونَ مُمْحِلِينَ لَيْسَ بِأَيْدِيهِمْ شَيْءٌ مِنْ أَحْوَالِهِمْ .[1]

ترجمة : بيا به يو بل قوم ته راشي هغوى به خپل متابعت ته را وغواړي هغوى به دده له متابعت څخه انکار وکوي رسول الله ﷺ فرمايل : دى به له هغوى څخه بېرته را وګرځي (هغوى ته به د فقر او د خراب حالت لپاره دعاء وکوي) نو هغوى به غريبان شي او داسې حالت به پرې راشي چې په لاسونو کې به يې هېڅ شى پاتې نه وي .

## زمکه به يې خبره مني

د دجال بلته فتنه داده چې زمکې ته اواز وکوي او څه ورته وايي نو زمکه به يې خبره مني په همدې پورتني حديث کې رسول الله ﷺ مخکې فرمايي چې دده په امر به زمکه خپلې خزانې را وباسي

[1] رواه مسلم

رسول الله ﷺ فرمايي : **وَيَمُرُّ بِالْخَرِبَةِ ، فَيَقُولُ لَهَا : أَخْرِجِي كُنُوزَكِ ، فَيَتْبَعُهُ كُنُوزُهَا كَيَعَاسِيبِ النَّحْلِ.** [1]

ترجمة : او په يوه خرابه باندې به تيريږي ورته به ووايي خزانې د را وباسه نو د زمکې خزانې به په ده پسې داسې را بهر شي لکه د شاتو مچۍ چې په خپل ملک (بادشاه) پسې کيږي .

# يو انسان به دوه ټوټې كوي بيا به هغه پاڅيږي

د دجال بله فتنه داده چې د خلکو په مخ کې به يو انسان په مينځ دوه ټوټې کړي خو چې کله يې هغه بېرته ځان ته ور وغواړي هغه به جوړيږي رسول اللهﷺ په همدې پورتني حديث کې فرمايي **ثُمَّ يَدْعُو رَجُلا مُمْتَلِئًا شَبَابًا ، فَيَضْرِبُهُ بِالسَّيْفِ فَيَقْطَعُهُ جَزْلَتَيْنِ ، رَمْيَةَ الْغَرَضِ ، ثُمَّ يَدْعُوهُ ، فَيُقْبِلُ وَيَتَهَلَّلُ وَجْهُهُ يَضْحَكُ.** [2]

ترجمة : بيا به يو ځوان را وغواړي او هغه به په توره باندې ووهي دوه ټوټې به يې کړي او دواړه ټوټې به يې سره لرې کړي بيا به يې ځان ته را وغواړي هغه به دده خبره ومني ده ته به راشي دده مخ به تازه شي ( دخوشحالى نه) او دی به خاندي .

ددې کس په اړه حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي : أن هذا الرجل الذي يقتله الدجال من خيار الناس أو خير الناس ، يخرج إلى الدجال من مدينة رسول الله صلى الله عليه وسلم فيقول للدجال : " أَشْهَدُ أَنَّكَ الدَّجَّالُ الَّذِي حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثَهُ . فَيَقُولُ الدَّجَّالُ : أَرَأَيْتُمْ إِنْ قَتَلْتُ هَذَا ثُمَّ أَحْيَيْتُهُ هَلْ تَشُكُّونَ فِي الأَمْرِ ؟

---

[1] رواه مسلم

[2] **رواه مسلم**

فَيَقُولُونَ لا . فَيَقْتُلُهُ ثُمَّ يُحْيِيهِ ، فَيَقُولُ : وَاللَّهِ مَا كُنْتُ فِيكَ أَشَدَّ بَصِيرَةً مِنِّي الْيَوْمَ ، فَيُرِيدُ الدَّجَّالُ أَنْ يَقْتُلَهُ فَلا يُسَلَّطُ عَلَيْهِ. [1]

ترجمة : بېشکه دا سړى چې دجال يې وژني له غوره خلکو څخه به وي او يا د خلکو غوره سړى به وي دجال ته به له مدينې منورې څخه را بهر شي دجال به ته به ووايي زه ددې ګواهي ورکوم چې ته دجال يې هغه چې مونږ ته يې رسول الله ﷺ په اړه خبرې کړي دي دجال به خپلو چاپېرو خلکو ته ووايي که زه دا کس مړ کړم او بېرته يې ژوندى کړم تاسې ته به څه شکايت وي؟ دوى به ورته ووايي نه دى به هغه کس مړ کړي او چې بېرته را ژوندى شي هغه به ورته ووايي والله اوس مې ښه پوره و پېژندلې چې ته هماغه دجال يې بيا به دجال وغواړي چې هغه په رښتيا مړ کړي لکن زور به يې پرې ونه رسيږي .

## خلکو ته به د هغوى مور پلار ژوندي ور ښکاره کوي

د دجال بله فتنه داده چې لکه مخکې چې تېر شول له ده سره خارق العادة کارونه دي نو يو چا ته به د هغه مور پلار ژوندي ښکاره کوي او هغه مور پلار به زوى ته وايي چې دده متابعت وکوه حضرت ابي امامة الباهلي فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : إِنَّ مِنْ فِتْنَتِهِ أَنْ يَقُولَ لأَعْرَابِيٍّ أَرَأَيْتَ إِنْ بَعَثْتُ لَكَ أَبَاكَ وَأُمَّكَ أَتَشْهَدُ أَنِّي رَبُّكَ ؟ فَيَقُولُ : نَعَمْ . فَيَتَمَثَّلُ لَهُ شَيْطَانَانِ فِي صُورَةِ أَبِيهِ وَأُمِّهِ فَيَقُولانِ يَا بُنَيَّ اتَّبِعْهُ فَإِنَّهُ رَبُّكَ . [2]

ترجمة : بېشکه دده يوه فتنه داده چې يو باندچي ته به ووايي ګوره که زه ستا مور پلار

---

[1] صحيح البخاري
[2] رواه ابن ماجة

را ژوندي كړم بيا به ته دا مني چې زه ستا رب يم هغه به ورته ووايي هو ! بيا به شيطان د هغه د مور پلار په شكل كې را څرګند شي او ده ته به ووايي اې بچيه دده خبره ومنه دا ستا رب دى .

او ددېنه بغير به نور داسې كارونه كوي چې د خلكو له ذهنونو څخه لرې وي او هغه كسان چې په ديني معلوماتو كې يې برخه كمه وي هغوى به وربانديې يقين كوي او مني به يې او هغه كسان چې له ديني معلوماتو ښه برخه ولري هغوى به پوهيږ ي چې دا دجال لعين هماغه دجال دى چې رسول الله ﷺ يې مونږ ته نښې ښودلې وې او هغوى به وربانديې نه غلطيږي او د همدې غرض لپاره رسول الله ﷺ مونږ ته د شيطان نښې وښودې او زيات تفصيل يې پكې وركړى دى ځكه خو يو ځاى رسول الله ﷺ فرمايل حديث يې مخكې تېرشو چې زه نن تاسې ته د دجال داسې صفات بيانوم چې لما نه وړانديې چا نه وو بيان كړي په بل ځاې كې رسول الله ﷺ د دجال د نښو او د هغه د واقعو په اړه وفرمايل : إنما أحدثكم هذا.لتعقلوه.وتفهموه.وتفقهوه.وتعوه.فاعملوا عليه. وحدثو به من خلفكم ليحدث الآخر فإن فتنه من أشد الفتن .

ترجمة : زه تاسې ته د دجال خبرې كوم ترڅو تاسې وربانديې عقل وچلوئ ، وربانديې پوه شئ ، يادې يې كړئ او عمل وربانديې وكوئ او ستاسې نه وروسته چې څوك وي هغوى ته يې هم ووايئ ځكه دا دجال له سختو فتنو څخه دى .

## د دجال له فتنې ځان ساتل

الله چې زمكې ته كومه بيماري را لېږلې ده دواء يې هم ورسره را لېږلې ده د دجال فتنه به يوه بيماري وي له هغې نه وړانديې يې دواء ورسره را

لېږلې ده چې د الله او د رسول الله ﷺ په هدایاتو باندې ځان پوه کول او په هغې باندې ټینګ ایمان ساتل دي او چې څوک د الله او د رسول الله ﷺ په هدایاتو باندې پوه شي او ورسره ټنیګ ایمان وربانديې راوړي د دجال فتنه هغه ته هیڅ ډول تاوان نشي رسولی او بیا چې څوک په هغه وخت کې ژوندي وي چې په کوم وخت کې دجال راوزي رسول الله ﷺ د هغه کسانو لپاره سلاح ښودلې ده چې ځان وربانديې له دجال څخه خلاص کړي .

## د سورة کهف لمړني لس آیتونه یادول

څوک چې د سورة کهف لس اولني آیتونه یاد کړي او هغه هر وخت وایي هغه د دجال په فتنه کې نه واقع کیږي په ځینو روایاتو کې د سورة کهف آخري آیتونه هم یاد کړل شوي دي لکن په اکثرو کې اولني آیتونه دي پدې اړه یو حدیث دی **عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهم عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَفِظَ عَشْرَ آيَاتٍ مِنْ أَوَّلِ سُورَةِ الْكَهْفِ عُصِمَ مِنَ الدَّجَّالِ.** [1]

ترجمة : د حضرت ابي الدرداء څخه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : چا چې د سورة کهف اولني لس آیتونه یاد کړل هغه د دجال څخه په حفاظت کې شو .

همدارنګه د حضرت نواس بن سمعان اوږد حدیث د دجال په اړه دی په هغه کې په یو ځای کې رسول

---

[1] صحیح البخاري

الله ﷺ فرمايي : فَمَنْ أَدْرَكَهُ مِنْكُمْ فَلْيَقْرَأْ عَلَيْهِ فَوَاتِحَ سُورَةِ الْكَهْفِ.[1]

ترجمة : كه پتاسې كې څوک په هغه وخت كې وو چې دجال را ښكاره شو نو د سورة كهف اولني آيتونه د ووايي .

## د سورة كهف او دجال تعلق

پوښتنه داده چې په سورة كهف كې څه داسې خاصه خبره ده چې په خاصه توګه دا څوک وايي او يا ددې اولني لس آيتونه څوک ياد كړي او يا ددې آخرني آيتونه څوک تلاوت كوي هغه به د دجال له فتنې څخه په امن كې وي؟

نو ددې پوښتنې په ځواب كې امام نووي په لنډه توګه فرمايي : سَبَب ذَلِكَ مَا فِي أَوَّلهَا مِنْ الْعَجَائِب وَالآيَات ، فَمَنْ تَدَبَّرَهَا لَمْ يُفْتَتَن بِالدَّجَّالِ ، وَكَذَا فِي آخِرهَا قَوْله تَعَالَى : أَفَحَسِبَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنْ يَتَّخِذُوا ..

ترجمة : ددې سبب دادی چې د سورة كهف په اول كې داسې عجائب او آيتونه دي چې څوک پكې تدبر او فكر وكوي نو هغه د دجال په فتنه كې نه راځي همدارنګه په آخر كې يې لكه الله چې فرمايي آيا ګمان كوي هغه كسان چې كافر دي چې دوی به نيسي هغه كسان ....

لكن نور علماء په تفصيل سره ددې پوښتنې ځواب كوي او فرمايي په سورة كهف كې څلور واقعې يادې كړل شوي دي :

## لمړی واقعه

[1] رواه مسلم

اصحاب الکهف د رسول الله ﷺ تر راتلو څخه ډېر وړاندې څو کسان وو چې د اکثر رواياتو له مخې اوه کسان وو هغوی د کانو څخه جوړو شويو خدايانو ته له سجدې کولو نه پداسې وخت کې انکار وکولو چې د ښار تقريباً ټول خلک او بادشاه ورته سجدې کولې او دا داسې خلک وو چې بادشاه ته نېږدې وو او د هغه په وړاندې يې ښه مقام درلود بادشاه ته د دوی دا انکار د زغملو نه وو نو يې د دوی د وژلو اراده وکوله دوی بله لاره نه درلوده له ښار نه وتښتېدل او په يوه غره کې په يوه سوري کې ځای په ځای شول د بادشاه لښکريان چې د دوی په لټون کې ووتل نو آخر يې دا سوری پيدا کړو خو لکه الله چې په سورت کهف کې فرمايلي دي چې پدې سوري کې مونږ يو ډول وېره ايښې وه او چا زړه نشوای ښه کولی چې ور ننوزي د بادشاه ځينې د رايو خلکو بادشاه ته مشوره ورکړه چې ددې سوري خوله د پسې بنده کړي دوی به د ننه د لوږې او تندې نه مړه شي دا رايه د بادشاه خوښه شوه او همداسې يې وکول هغوی هلته الله په خپل کامل قدرت دری سوه نه کاله ويده کړل پدې دوران کې به دوی په ښي او چپ اړخ آوښتل ترڅو يې له زمکې سره لګېدلې اندامونه خراب نشي او ددې امله هم پکې يو ډول رعب وو چې ليدونکي به فکر کاوه چې دوی مړه دي لکن دوی به داسې ښکاره کېدل لکه دوی چې ويده وي چې کله را وېښ شول نو د يو ډول سستيا احساس يې کاوه او د زياتې لوږې احساس يې کاوه چې معلومېدل چې دوی د ډېر زيات وخت لپاره ويده شوي دي نو يې يو له بل نه پوښتنې شروع کړې چې مونږ د څومره وخت لپاره ويده شوي يو؟ يو پکې وويل مکمله ورځ ويده شوي يو چې ويې کتل اوس هم لا لمر ولاړ وو نو ويې ويل يوه ورځ هم پوره نه يو ويده شوي د ورځې په څه برخه کې ويده شوي يو خو دوی دا بحث اوس پرېښود هغه پيسې چې د دوی سره وې هغه يې را

ټولې کړې او يو کس يې ولېږلو چې په زيرکتيا سره لاړ شي او له بازار نه ډوډۍ راوړي او پاک طعام راوړي او هوښيار اوسي چې څوک يې ونه ويني هسې نه چې څوک يې وپيژني او بيا يې شرک کولو ته مجبور کړي دا کس چې بازار ته راغلو هرڅه ورته بدل ښکاره کېدل فکر يې کاوه چې په بازار کې دومره بدلون په يوه ورځ کې څنګه راغلو ؟ او له بله پلوه دده له جامو څخه او دده له تللو ، حرکاتو سکناتو او له هغه روپيو نه چې له ده سره وې خلکو ته نا اشنا ښکاره شو او خلکو فکر وکاوه چې دا له کوم ځايه مسافر راغلی دی او په بازار کې اوس داسې وخت دی چې هغه ظالم او کافر بادشاه له ډېره وخته مړ شوی دی او د هغه د حکومت نظام مکمل ختم شوی دی او ښار ټول مسلمان شوی دی او دلته اوس د يو صالح مسلمان سړي حکومت دی قصه اوږده ده زه يې لنډوم بالآخره خلک پوه شول چې دا له هغه کسانو څخه دی چې پدې ځای کې اول مسلمانان کسان وو او د ظلم له ډاره اوس بېرته تښتېدلې وو را ستانه شول نو ټول خلک ورته خوشحال شول او هرچا کوښښ کولو چې هغه کسان ووينې چې ډېر وخت يې دوی صرف قصې آورېدلې او اوس د خلکو لپاره دا د الله يوه معجزه شوه چې له مرګه وروسته را ژوندي شول خلک يې ټول ليدلو ته ورغلل کله چې د خلکو پدې يقين شو چې الله مړي را ژوندي کولی شي او دا يې د دوی د سترګو په وړاندې ژوندی مثال دی نو الله د خپل علم او حکمت له مخې د هغه کسانو ارواح بېرته واخيستل او هغوی وفات شول .

تر وفات وروسته ځينې خلکو ويل چې پدې ځای به څه يادګار جوړ کړو او ځينو ويل چې دلته به جومات جوړ کړو بالآخره هغه ډله غالبه شوه او هلته جومات جوړ شو اوس د دوی په اړه مونږ صرف په هغه خبر و خبر يو چې الله او د هغه رسول مونږ ته ويلي وي او ډېرې خبرې د دوی په اړه

اوس هم معلومې نه دي لکه معین وخت دا خلک په څه وخت کې وو؟ دوی ته پخپله په زړه کې رڼا ور اچول شوې وه او که کوم حواري اسلام ته را غوښتي وو ؟ همدارنګه شمېره یې هم په دقیقه توګه معلومه نه ده چې څو کسان وو لکه مخکې چې تېر شول غالب روایات داسې دي چې اوه وو خو بیا هم قرآن کریم تربنه په ښکاره کې ساکت دی خو دا شیان مهم نه دي پدې واقعه کې مهمه خبره داده چې :

دا واقعه الله رسول الله ﷺ ته ددې لپاره بیان کړه چې رسول الله ﷺ وربانديې خوشحال شي او هغه کسانو ته چې نوي نوي مسلمانان کیږي د معجزې په ډول سره ووایې او پدې قصه کې هم د الله یوه معجزه ده دوی ته به یې بیان کړي او د دوی په زړونو کې به نور هم د الله په قدرتونو باندې ایمان ټینګ او کلک شي .

ددې قصې نزول په مکه مکرمه کې وشو په کوم وخت کې چې هغه کسان چې له ده سره یې ایمان راوړی وو په سختیو او تکلیفونو کې وو پدې سره به مسلمانانو ته ور په یاد شي چې له دوی نه وړاندې هم مسلمانانو تکلیفونه تېر کړي دي او له دوی نه وړاندې هم داسې کم خلک وو چې په ټول ښار کې یوازې دوی مسلمانان وو .

دا قصه د هغه کسانو لپاره هم د خوشحالي خبره وه چې هغوی به نا امیده وو او ویل به یې چې مونږ خو یو څو محدود کسان یو د ټولې مکې او بیا د ټولې دنیا له کفارو سره به څه کوو؟

دا قصه تر قیامت پورې ددې یو قوي دلیل دی چې رسول الله ﷺ په حقه پیغمبر وو او الله د هغه خبر نه په وحی سره خبرولو چې د رسول الله ﷺ په وخت

کې ورڅخه هڅوک نه وو خبر او که چېرته الله رسول الله ﷺ ته دا قصه نه واى نازله کړې نو اوس به هم ترې هېڅوک نه وو خبر .

پدې واقعه کې د الله د قدرت معجزه ده چې درى سوه نه کاله يې کسان پداسې توګه ويده کړي وو چې کله دوى را ويښ شول د يوې او يا د نيمې ورځې د خوب احساس ورته کېدو .

پدې قصه کې دليل دى چې څوک خپل ځان الله ته وسپاري او د هغه لپاره قرباني ورکړي الله په هر ډول کولى شي چې دوى وساتي ځکه خو يې په کهف کې داسې وېره اچولې وه چې هېڅوک نشواى ورتلى هلته ور ننوزي ... او داسې نور . ..

## دوهمه واقعه

په سورة کهف کې دوهمه واقعه د دوو کسانو ده چې باغونه يې درلودل يو مسلمان او بل کافر وو قرآن کريم لکه چې د دوى نومونه نه دي ښکاره کړي داسې يې د دوى ځاى ، معين تاريخ او نور معلومات هم نه دي ښکاره کړي په دوى دواړو کې مسلمان غريب وو لاس يې تنګ وو ژوند يې سخت وو لکن لوى نعمت د ايمان ورسره وو او په دوى کې کافر چې وو ښه مال يې وو او ژوند يې ښه جوړ وو او دوه باغونه يې وو باغونه يې دواړه پداسې ځاى کې وو چې خورماوې (کجورې) ترينه را تاو وې او لدې خورماوو څخه ورته يو ډول قلا جوړه شوې وه او د انګورو په مينځ کې به يې هر ډول سبزي ګانې او نور شيان کرل او د دواړو باغونو په مينځ کې ويالې روانې وې په باغ کې تردې غوره شى څوک څه غواړي؟ چې له هرې خوا نه بند وي ، څوک ورتلى نشي ، حاصلات يې ښه وي ، وياله يې د باغ په مينځ کې وي نور انسان څه غواړي؟ نو مالک يې خپلو باغونو ته ډېر زيات

خوشحال وو او په کبر کې ور ننوت پداسې حالت کې چې کافر وو ویل یې : دا باغونه به همېشه زما سره وي او پدې سره زه د ټولو خلکو نه زیات مالدار یم او څه چې دي بس همدا شی دي دا مې جنت هم دی او دا مې آخرت هم دی او ددېنه بغیر نه جنت شته او نه آخرت او نه بل نعمت .

مسلمان ملګري یې هغه د اسلام لارې ته را وغوښت او هغه ته یې وویل چې دومره کبر مه کړه او ورته یې وویل چې کله د باغ درته ښه ښکاره شو نو داسې ووایه : مَا شَاءَ اللَّهُ لاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللَّهِ او هغه ته یې وویل چې لدې وډار شه چې په باغ د څه تندر او یا اور رانشي .

لکن هغه کافر د خپل مال په تکبر کې نشه وو نو دده خبرې ته یې هېڅ غوږ کېنښود او لا نور هم په کبر کې شو او دده خبرې ته یې هېڅ توجه ورنکړه او هسې بې فایدې ورته ښکاره شوه .

کله چې صبا د خپل عادت مطابق بیا باغ ته لاړو نو یې ولیدل چې باغونه یې سپېره دښته وه هلته پوه شو چې ده پرون ډېرې غلطې خبرې او غلط تکبر وکولو او ارمان یې وکولو چې کاش د هغه مؤمن خبرو ته یې غوږ ایښی وو خو لاسونه یې مروړل او وخت تېر وو .

## دریمه واقعه

د حضرت موسی او د حضرت خضر واقعه ده او له هغه وخت نه شروع شوه کله چې حضرت موسی خلکو ته خبرې کولې او یو سوال کونکی ورته پاڅېدو ورته یې وویل : د زمکې په مخ باندې داسې څوک شته چې لتا څخه ښه عالم وي او زیات علم ورسره وي؟ ده د خپل ګمان مطابق ورته وویل : نـــــــــــــه ... الله ورته وویل : یو کس شته چې لتا څخه یې علم زیات دی او هغه په

مجمع البحرین کې دی حضرت موسی خپل رب ته وویل چې زه به له هغه سره څنګه ملاقات وکوم الله ورته وویل مجمع البحرین ته ځه او یو کب له ځان سره واخله په کوم ځای کې چې لتا څخه کب (ماهی) ورک شو هلته دی حضرت موسی له ځان سره ماهی واخیست او خپل شاګرد یوشع بن نون یې هم له ځان سره ملګری کړو دوه شپې او دوه ورځې یې سفر وکولو حضرت موسی تر هغه ځایه پورې نه وو ستړی شوی چېرته چې د الله دا بنده وو لکن په غلطي کې له هغه ځای نه تېر شول چېرته چې دوی روان وو له هغه وروسته حضرت موسی د ستړیا احساس وکولو او خپل شاګرد ته یې وویل : پدې سفر کې خو ډېر ستړي شوو دا زمونږ د غرمې ډوډۍ راکړه هغه ته اوس ور په یاد شول ویل تاته یاد دي چې مونږ هلته د کانې سره وو هلته خو هغه ماهی له مونږ نه ورک شو بیا زما نه هېر وو چې تاته ووایم او دا لماڅخه شیطان هېر کړل حضرت موسی ورته وویل : مونږ خو په همدې ځای پسې ګرځېدو بېرته را تاو شول د هماغه کانې لور ته په کوم ځای کې چې له دوی څخه ماهی ورک شوی وو کله چې هغه کانې ته را ورسېدل ویې لیدل چې د الله هغه بنده په خپله جامه کې سر پټ کړی ناست دی حضرت موسی وربانديې سلام واچولو بیا یې ورته وویل : زه موسی یم حضرت خضر ورته وویل : هغه د بني اسرائیلو موسی؟ حضرت موسی ورته وویل : هو ... ته ماته اجازه راکوې چې زه لتا سره ملګري وکوم او لتا سره چې کوم علم دی له هغه نه ماته څه علم راکړې؟ حضرت خضر ورته وویل : ماته الله چې څه علم راکړی دی ته وربانديې نه یې خبر او ته لما سره ملګرتیا نشې کولی زه چې څه کوم هغه ته به ستا صبر ونشي حضرت موسی چې د علم تږی وو ورته یې وویل : **انشاء الله** زه به صبر وکوم او تا به ما له هغه کسانو څخه پیدا کړې

چې صبر کونکي وي نو حضرت خضر هم ورسره ومنله او دواړه روان شول کښتۍ ورسره نه وه د بحر په غاړه پیاده روان وو یوه کښتۍ وربانديږ راغله هغه خلکو ته یې وویل چې دوی بار کړي هغه د کښتۍ مالکانو حضرت خضر و پېژندلو نو بغیر د مزدوري نه یې په کښتۍ کې یوړل خو کله چې هلته ورسېدل حضرت خضر پاڅېدو او د کښتۍ نه یې یوه تخته وویسته او هغه یې سوری کړه حضرت موسی ورته وویل : دې خلکو له مونږ سره څومره ښه وکول پیسې یې هم وانه اخیستې او تا د دوی کښتۍ سوری کړه چې دوی غرق شي؟ حضرت خضر ورته ویل : ما درته نه وو ویلي چې ته لما سره صبر نشې کولی؟ حضرت موسی ورته وویل : زما نه دا خبره هېره وه بس هېره راته معاف کړه او پدې یوه غلطي ما له ځانه مه جدا کوه بیا روان شول په لاره کې یو ماشوم وو د نورو ماشومانو سره یې لوبې کولې حضرت خضر ورغلو هغه ماشوم یې تر سر ونیولو زور یې ورسره وکولو سر یې ترینه بېل کړو حضرت موسی ورته ویل : تا یو بې ګناه انسان مړ کړو؟ حضرت خضر ورته ویل : ما درته نه ویل چې ته لما سره صبر نشې کولی؟ حضرت موسی ورته ویل : بس دا آخري ځل دی که دا ځل ما لتا څخه پوښتنه وکوله نو بیا ما له ځان سره مه ملګری کوه بیا ستا عذر شته چې ما له ځانه جدا کړې بیا دواړه روان شول یوه کلي ته راغلل له خلکو یې ډوډۍ وغوښته هغوی ورته ورنه کړه په کلي کې چې لږ مخکې لاړل یو دېوال کوږ شوی وو او نېږدې وو چې وغورځیږي حضرت خضر په هغه دېوال باندې لاس ووهلو او هغه سم شو موسی ورته وویل : پدې سمولو باندې به د مزدوري اخیستې وه (مونږ له دوی څخه خوراک وغوښت دوی رانه کړو نو چې ددې دېوال په سمولو باندې د مزدوري اخیستې وای نو په هغه به مو خوراک کړی وو) حضرت خضر

ورته وويل : بس ستا د دريم ځل نه صبر کېدل زما او ستا په مېنځ کې جدا يي شوه خو زه به ددې خبرو راز تاته ښکاره کړم چې تا وربانديې صبر نشواى کولى .

هغه کښتۍ مې چې عيبي کړه او ماته مې کړه ځکه دلته يو بادشاه وو هغه به ګرځېدو او له خلکو نه به يې دا کښتۍ په زور اخيستې او هغه معيوبه کښتۍ نه اخيستله نو ما دا معيوبه کړه چې اوس پرې د بادشاه چاپه راشي نو دا به نه اخلي او دوى خو به دا عيب بېرته جوړ کړي .

هغه هلک مې چې مړ کړو د هغه مستقبل او راتلونکې ښه نه وه مور او پلار يې مؤمنان وو نو که دا ماشوم لوى شوى واى ددې وېره وه چې دا مور او پلار به تنګ کړي نو مونږ اراده وکوله چې دا يې مړ کړو ددې په ځاى به الله بل تردې غوره ماشوم ورکړي .

او دا ديوال چې وو هغه په کلي کې د دوو يتيمانو وو چې پلار يې نېک سړى وو او تردې ديوال لاندې د دوى خزانه وه نو که دا ديوال غورځېدلى واى نو هغه خزانه به ښکاره شوې وه اوس ما هغه دېوال سم کړو ترڅو چې دوى بالغان کيږي دا به هلته پرته وي دا هغه شيان وو چې تا وربانديې صبر نشواى کولى او دا ما هم له خپله ځانه نه دي کړي يعني الله يې راته امر کړى وو چې دا وکوم .

## څلورمه واقعه

په سورة کهف کې څلورمه واقعه د ذى القرنين يو بادشاه ده قرآن کريم مونږ ته تفصيل نه دى راکړى چې دا څوک او په څه وخت کې وو خو صرف دومره ښکاره دي چې يو صالح او نېک بادشاه وو په الله او د قيامت په ورځ يې ايمان راوړى وو

ﷲ په زمکه کې قوت او طاقت ورکړو او په مخه به روان وو خلک به یې په دعوت او طاقت سره د ﷲ دین تابع کول تردې چې هغه ځای ته ورسېدو چې هلته داسې ښکاره کېږي لکه لمر چې تردې ځای څخه پټېږي بیا ﷲ ورته په وحی سره ښکاره کړل چې دلته کوم خلک اوسیږي ددوی فیصله ستا په لاس کې ده که عذاب ورکوې او که ښه رویه ورسره کوي او د صالح او نېک بادشاه طریقه دا نه وي چې خلکو ته زر عذاب ورکړي نو یې اعلان وکولو هغه کسان چې د ﷲ د لارې له منلو څخه انکار کوي او کافر کیږي هغوی ته به په دنیا کې عذاب ورکړي او بیا به په آخرت کې ﷲ ورسره حساب کوي او هغه کسان چې د اسلام له نعمت څخه برخمن شوي دي له هغوی سره به ښه رویه وکوي او عزت به ورکړي نو کله چې ذو القرنین په خپل سفر کې د غرب لوري دې نقطې ته ورسېدو نو بېرته یې مخه شرق لوري ته کړه نو هغه ځای ته ورسېدو چې داسې ښکاره کېده لکه اول چې لمر لدې ځای څخه را پورته کیږي هغه یوه داسې زمکه وه چې لوڅه وه ونې پکې نه وې او نه داسې لوړ ځایونه پکې وو چې لمر یې له خلکو او اوسېدونو څخه پټ کړي او څنګه فیصله یې چې د مسلمانانو او کافرانو په اړه په غرب کې کړې وه هماغه شان فیصله یې دلته هم وکوله بیا یې هلته یو ډول مخلوق ولیدو چې د دووو غرونو په مینځ کې هوسېدل او یوه لاره یې درلوده او په ژبه یې پوهېدل ډېر ګران وو او ډېره سخته ژبه یې ویله دا خلک یاجوج او ماجوج وو هلته یې له یو بادشاه سره لیدل وشول هغه له ده څخه وغوښتل چې له هغه سره مرسته وکوي ترڅو دا یاجوج ماجوج دلته بند کړي او د وتلو لاره یې ده هغه لاره به ورته بند کړي او ددې په بدل کې چې دی څومره مال غواړي نو هغه خلک به یې ددې لپاره ورکړي چې د یاجوج ماجوج له شر او ضرر نه به خلاص شي ذو القرنین له دوی سره دا خبره ومنله او ورته یې وویل :

ستاسي مال ته مې ضرورت نشته خو تاسې به راسره د كار مرسته كوئ ذو القرنين عجيبه انجينري استعمال كړه اول يې د وسپنې ټوټې سره راټولې كړې او دومره يې لوړې كړې چې د غرونو تر سرونو ورسېدلې بيا يې په وسپنه پسې اور بل كړو او سرپ يې پكې تويې كړل ترڅو نوره هم كلكه شي او هغه يې په دې د وسپنو په دېوال باندې ور تويې كړل او پدې توګه يې هغه فرجه چې د دوو غرونو په مينځ كې وه له كوم نه به چې ياجوج ماجوج دنيا ته راوتل هغه بنده كړه هغوی نه ددې ديوال سوري كول كولی شي او نه وربانديې را ختلی شي او هغه قوم يې له شر نه خلاص شو وروسته لدې چې ددې بند كار ختم شو نو ذو القرنين هغه ته وكتل او د الله ثناء يې وويله چې ده ته يې د داسې عمل توفيق وركړی دی او لارښونه يې ورته كړېده نه ورته په زړه كې كبر ورغلو او نه ورته ځان لوی ښكاره شو .

نو په سورة كهف كې دا څلور واقعې دي او دا ټولې واقعې تقريبا له تفصيل سره په سورة كهف كې راغلې ددې امله خو د سورة كهف لويه برخه همدا قصې دي نو پدې څلورو قصو كې څلور ډوله فتنې دي .

په اوله قصه كې د دين فتنه وه ځكه بادشاه له اصحاب كهف نه غوښتل چې د الله عبادت د نه كوي او دجال به هم همدا غواړي .

په دوهمه قصه كې د مال فتنه ده هغه كس مالدار شوی وو نو په فتنه كې واقع شوی وو او د دجال سره به هم مال ډېر زيات وي اكثر خلك به دده په فتنه كې دده د مال له امله واقع كيږي .

په دريمه قصه كې د علم فتنه ده او دا فتنه به له دجال سره هم وي ځينې خلكو ته به داسې خبرې

کوي چې خلکوته به هغه خبرې ډېرې عجيبه ښکاره شي او په ده به يقين وکوي نو دده په فتنه کې به واقع شي .

په ځلورمه واقعه کې د بادشاهي فتنه ده له دجال سره به هم بادشاهي وي واکمني به ورسره وي او ګڼ فوجونه به ورسره وي نو خلک به يې ځکه متابعت کوي نو ددې مناسباتو له امله سورة کهف ته دا فضيلت ورکړل شوی دی چې دا څوک ډېر وايي يا يې اولني لس آيتونه ياد کړي او يا يې آخري آيتونه تلاوت کوي او يا دا د جُمعې په ورځ څوک تلاوت کوي نو هغه به د دجال له شر نه په امن کې وي او هغه به د دجال په فتنه کې نه راځي .

## د دجال له شرنه د خلاصي دعاء

د دجال د فتنې څخه د خلاصېدلو دوهمه لاره يوه دعاء ده چې حضرت عبد الله بن عباس فرمايي رسول الله ﷺ به دا دعاء دوی ته داسې ورښوده لکه د قرآن کريم کوم سورة چې دوی ته ور ښيي او رسول الله ﷺ به فرمايل : داسې واياست : **اللَّهمَّ إنّي أعوذُ بك من عذاب جهنَّم، وأعوذُ بك من عذاب القبر، وأعوذُ بك من فتنة المسيح الدجّال، وأعوذُ بك من فتنة المَحْيا والمَمات** . [1]

ترجمة : ای الله زه په تا باندې پناه غواړم د عذاب د جهنم څخه او زه په تا باندې پناه غواړم له عذاب د قبر څخه او زه په تا باندې پناه غواړم له فتنې د مسيح دجال او زه په تا باندې پناه غواړم له فتنې د ژوند او مرګ .

## مکي مکرمې اومديني منورې ته تلل

[1] **صحيح مسلم**

د دجال څخه د خلاصي بله لاره داده چې انسان مكې مكرمې او يا مدينې منورې ته لاړ شي څو ځله مخكې احاديث تېر شول چې رسول الله ﷺ فرمايل دجال به مكې مكرمې او مدينې منورې ته نشي ننوتلى او دېته چې ورغلې څومره لارې وي هلته به له تورو سره ملائكې ولاړې وي او دى به نه پرېږدي چې دې مقدسې او پاكې زمكې ته ننوزي لكه رسول الله ﷺ چې فرمايي : **لا يدخل المدينة رعب المسيح الدجال لها يومئذ سبعة أبواب على كل باب ملكان.** [1]

ترجمة : مدينې ته د مسيح الدجال رعب نه ورننوزي پدې وخت كې به د مدينې اوه دروازې وي په هره دروازه كې به دوه ملائكې ولاړې وي .

[1] **صحيح البخاري**

# حضرت عیسی

حضرت عیسی د حضرت مریم زوی دی الله په معجزه سره یوازې د هغې نه پیدا کړی دی د الله بنده او د هغه رسول دی او له اول العزم من الرسل څخه یو دی د الله له لوري بني اسرائیلو ته ور لیږل شوی وو ترڅو هغوی سمې لارې ته برابر کړي او انجیل کتاب یې ورکړی وو په قرآن کریم کې یې نوم ۲۵ ځله ذکر شوی دی د حضرت عیسی سره لکه د نورو انبیاوو په څېر معجزې وې ده مبارک مړي ژوندي کولی شوای ، ړانده به یې بینا کول او د داسې نورو پیدائشي بیماریانو څخه لکه برګی او داسې نورو څخه یې خلک خلاصول په بدن کې تکړه سړی وو برابر قد یې وو سینه یې فراخه وه ، څڼې به یې ساتلې او د اوږو په مینځ کې به پرتې وې ، رنګ یې سوروالي ته مائل وو په صحابه وو کې حضرت عروة بن مسعود الثقفي ورسره ډېر مشابه وو دا صفات یې رسول الله ﷺ بیان کړي دي چې هغه مبارک ﷺ د اسراء او معراج په شپه لیدلی وو .

حضرت مریم د حضرت عیسی مور د حضرت زکریا تر پالنې لاندې وه .... تردې چې لو یه شوه او دا په عبادتګاه کې د ننه وه چې حضرت جبریل ورته راغلو او هغې ته یې زېری ورکړو چې ددې به ماشوم پیدا کیږي جبریل حضرت مریم ته وویل چې الله دا معززه کړې ده د ټول عالم په ښځو یې بهتري ورکړېده او دا یې ورته وویل چې ددېنه به یو مقدس ماشوم پیدا کیږي او هغه به بیا نبي وي او الله به په هغه باندې انجیل نازلوي او دا یې هم ورته وویل چې عیسی به په ماشومتوب کې د زانګو په وخت کې هم له خلکو سره خبرې کوي او کله چې زوړ شي بیا به هم له خلکو سره خبرې کوي او له صالحینو څخه به وي

حضرت مریم چې دا خبرې واورېدې نو د جبریل نه یې د کیفیت پوښتنه وکوله دا چې له دې سره کوم ناریینه لګېدلی نه دی نو څنګه کېدلی ش چې لدې نه د ماشوم پیدا شي حضرت جبریل ورته وویل : كَذَلِكِ اللَّهُ يَخْلُقُ مَا يَشَاء إِذَا قَضَى أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ [1] .

ترجمة : همدارنګه الله هغه څه پیدا کوي چې ورته خوښه یې شي کله چې د کوم کار فیصله وکوي الله ورته وایي شه بیا هغه کیږي .

نو حضرت عیسی د الله په حکم باندې داسې پیدا شو لکه حضرت آدم چې څنګه پیدا شوی وو هغه ته هم الله د کن امر کړی وو او بغیر د مور او پلار نه یې پیدا کړو او حضرت عیسی یې بغیر د پلار نه پیدا کړو .

بیا الله حضرت عیسی پیغمبر کړو او د انجیل مقدس کتاب یې ورباندې نازل کړو الله په قرآن کریم کې د انجیل په اړه فرمایي : نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقاً لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَأَنزَلَ التَّوْرَاةَ وَالإِنجِيلَ . 2

ترجمة : الله نازل کړی دی په تا باندې کتاب په حقه سره تصدیق کونکی د هغه څه چې له دېنه مخکې تېر شوي دي او الله تورات او انجیل نازل کړي دي .

عیسی د نبوت خپله وظیفه سر ته رسوله او خلک یې د حق لارې ته را غوښتل یهود چې څرنګه زیات کینه ګر قوم دی او ډېر انبیاء یې په شهادت رسولي دي نو یې د حضرت عیسی سره هم کینه شوه او پدې یې ورسره کینه کوله چې الله ده ته

---

[1] سورة آل عمران آية ٥٩
[2] سورة آل عمران آية ٣

ولې داسې ښکاره معجزې ورکړې دي او له مونږ سره نشته ولې هغه مړي ژوندي کولی شي ، ولې هغه پیدائشي بیماران له بیماري څخه خلاصولی شي او مونږ یې نشو کولی ، هغه د ختې نه یو شی جوړ کړي په هغه کې پوکی وکوي هغه آلوزي او مونږ دا نشو کولی او داسې نورې معجزې وې چې الله حضرت عیسی ته وربانددې عزت ورکړی وو هغه د دوی د سترګو ازغی شوې او د حضرت عیسی سره یې کینه شروع کړه تردې چې دی مبارک یې تنګ کړو او هغه به له دوی سره په یو ځای کې نه اوسېدو اکثر وخت به ده مبارک سفر کاوه دوی پدې هم قناعت نه کاوه چې هغه له دوی سره په یو ښار کې نه اوسېدو په هغه وخت کې د دمشق په علاقه کې یو بادشاه وو چې مشرک وو هغه ته ورغلل ورته یې وویل چې په بیت المقدس کې یو کس دی هغه دده په خلاف خلک را پورته کوي او ګمراه کوي یې او دده له لارې نه یې اړوي بادشاه وربانددې غصه شو او په بیت المقدس کې چې دده کوم نائب وو هغه ته یې ولیکل چې دا کس پیدا کړه او نظر پرې ساته په یو ځای کې یې بند وساته او مه پرېږده چې له خلکو سره ئې تعلق زیات شي د بادشاه نائب ته چې دا خبر ورسېدو یوه ډله یهودیان یې له ځان سره کړل او هلته پسې ورغلو چېرته چې حضرت عیسی له خپلو ملګرو سره موجود وو او دوی یې هلته محاصره کړل د جُمعې د ورځې آخره برخه وه او د هفتې شپه را روانه وه کله چې حضرت عیسی پوه شو چې اوس خو دوی به یا را ننوزي مونږ به نیسي او یا به مونږ دېته اړ کېږو چې مونږ وربهر شو نو خپلو ملګرو ته یې وویل : څوک دا خوښوي چې زما چهره د وربانددې واچول شي او هغه د په دار وځړول شي په جنت کې به زما سره ملګری وي؟ یو ځوان پاڅېدو ویل زه یا نبی الله ... لکن حضرت عیسی چې ورته وکتل وړوکی ورته ښکاره شو نو یې ورته وویل : ته کینه بیا یې هماغه اواز

وکولو نو بیا هم هماغه ځوان پاڅېدو په دریم بیا هم همدا ځوان پاڅېدو بیا ورته حضرت عیسی وویل : دا مرتبه هم ستا لپاره ده ...

د حضرت عیسی ﷺ ځېره په هغه کس باندې واچوله هغه بالکل په هرڅه کې لکه حضرت عیسی داسې ښکاره کېدو او د کوټې په چت کې یوه کړکۍ خلاصه شوه په حضرت عیسی باندې لکه د خوب داسې کیفیت راغلو او په همدې حالت کې اسمان ته پورته کړل شو هېڅ تکلیف ورته ونه رسېدو کله چې یهود راغلل دا کسان یې ونیول او هغه ځوان یې پدې ګمان کې اعدام کړو چې دا عیسی وو او ددې خبرې په حقیقت یوازې هغه کسان پوه شول چې له ده سره په کوټه کې وو پاتې نورو ټولو خلکو دا ګمان کاوه چې حضرت عیسی په دار وځړول شو .

د یو بل قول له مخې :

یهود چې کله پوه شول چې دی مبارک په کوټه کې دی یو کس چې طیطایوس ورته ویل کېدل هغه یې کور ته د ننه ور ولېږلو چې حضرت عیسی ونیسي او بهر ته یې را وباسي چې دوی یې ووژني کله چې هغه کس ور ننوت الله حضرت عیسی د کوټې له چت نه اسمان ته پورته کړو او د حضرت عیسی ځېره یې په طیطایوس (هغه کس چې دوی ورپسې ور لېږلی وو) واچول شوه دوی راغلل او همدا کس یې ونیولو او اعدام یې کړو .

د یو بل قول له مخې :

دوی یو کس د حضرت عیسی په ساتنه باندې مقرر کړو چې چېرته عیسی ځي ته به ورپسې وې حضرت عیسی ترینه روان شو هغه یوه غره ته وختلو او له هغه ځایه الله اسمان ته پورته کړو ځېره یې په همدې څوکیدار باندې ور واچوله دوی همدا کس را ونیولو او اعدام یې کړو .

د یو بل قول له مخې:

یو کس چې ځان یې د حضرت عیسی ملګری ګڼلو په پټه کې منافق وو یهودو ته ورغلو چې هغوی راولي او د حضرت عیسی هستوګنځی ورته وښیي ترڅو یهود هغه ونیسي او قتل یې کړي کله چې هغوی راغلل چې حضرت عیسی ونیسي الله حضرت عیسی اسمان ته پورته کړو او د هغه څېره په ده باندې واچول شوه یهودو دی قتل کړو .

د یو بل قول له مخې :

یهود خبر شول چې الله حضرت عیسی اسمان ته پورته کړو ددې لپاره چې اوس د خلکو په مینځ کې خبرې زیاتې نشي او د حضرت عیسی عقیدتمن خلک نور هم زیات نشي نو یهودو یو غریب معصوم کس را ونیولو او هغه یې په دار وځړولو او اعلان یې وکولو چې مونږ حضرت عیسی قتل کړو ځرنګه چې د حضرت عیسی له خلکو سره ډېر تعلق نه وو نو خلکو هغه صرف په نوم پېژندلو او په شکل ډېرو خلکو نه وو لیدلی نو خلکو پرې یقین وکولو .

پدې روایاتو کې هغه روایات ډېر راغلي دي چې د یهودو کس ورغلو او الله د حضرت عیسی څیره په

همدې کس ور واچوله بیا دوی هم حیران وو چې دا که عیسی وي نو زمونږ هغه ملګری څه شو او که دا زمونږ ملګری وي نو دا مخ یې څنګه بدل شو نو ﷲ هم فرمايي : **وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَكِن شُبِّهَ لَهُمْ ۚ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ ۚ مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا .** [1]

ترجمة : او د دوی دا خبره چې مونږ مسیح عیسی بن مریم د ﷲ پیغمبر مو مړ کړو حال دا چې هغه یې نه په دار وځړولو او نه یې مړ کړو لکن په دوی باندې هغه کار مشتبه شو هغه کسان چې د هغه په اړه یې اختلاف کړی دی پدې اړه په قطعي توګه په شک کې آخته شوي دي او هیڅ علم پدې اړه نلري صرف له ګمان څخه کار اخلي او هغوی په یقیني توګه نه دی وژلی .

او همدا معنی چې حضرت عیسی پورته کړل شو د عیسایانو په هغه کتابونو کې هم شته چې دوی یې مقدس ګڼي د دوی د انجیل له عربې ترجمې نه یوه ټوټه را اخلم د دوی په انجیل برنابا کې لیکلي دي : **ولمَّا دَنتِ الجُنودُ مَعَ يَهُوذا مِنَ المَحل الذي كانَ فيهِ يَسوعُ، سَمِعَ يَسُوعُ دُنُوَّ جَمٍّ غَفِير . فلِذلِك انسحَبَ إلَى البيْتِ خائفاً . وكَانَ الأحَدَ عَشرَ نِياماً . فلمَّا رَأى اللهُ الخطرَ عَلَى عَبدِهِ، أمَرَ جبريلَ، ومِيخائيلَ، وَرَفائيلَ، وأوريلَ سُفَرَاءَهُ أن يَأخذوا يَسُوعَ من العَالم . فجَاءَه المَلائكة الأطهَارُ وأخذوا يَسُوعَ مِنَ النافِذةِ المُشرفَةِ عَلَى الجَنُوبِ . فحملوهُ ووضعُوهُ في السَّمَاء الثالِثةِ في صُحْبَةِ المَلاَئِكَةِ التي تسَبِّحُ الله إلىَ الأبدِ .** [2]

ترجمة : کله چې (د يهودو) لښکرې له يهوذا سره هغه محل ته را نږدې شوې چېرته چې يسوع (حضرت عيسى ) وو کله چې حضرت عيسى د لويې جمع خلکو د را نږدې کېدلو په اړه واوريدل نو يو

[1] سورة النساء آية ١٥٧
[2] انجيل برنابا الاصحاح

کور ته په وېره کې لاړو او هلته ۱۱ کسان ویده وو کله چې الله په خپل بنده باندې خطر ولید نو جبریل، میخائیل، رفائیل او اوریل ملائکو ته یې امر وکولو چې حضرت عیسی له عالم نه را پورته کړئ پاکې فرښتې ورته راغلې او عیسی یې له هغه کړکۍ نه وویستلو چې د جنوب لور ته له کوټې نه وتلې وه او یو یې ورو دریم اسمان ته یې ورسولو او هلته یې د ملائکو په ملګرتیا کې پرېښود چې تر ابد پورې به د الله تسبیح وایي .

همدارنګه په پورتني آیت کې چې الله فرمایل **وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ** داسې مفهوم په پورتني یاد کړل شوي انجیل کې هم شته هلته لیکلي دي : **ودَخلَ يَهُوذا بعُنفٍ إلى الغرفةِ التي أُصْعِدَ مِنهَا يَسُوعُ . وَكانَ التلاميذ كلُّهُم نِيَاماً . فأتىَ اللهُ العَجيبُ بأمْرٍ عَجيبٍ . فتغيَّرَ فِي النطق، وفِي الوَجهِ فصَارَ شبهاً بيَسُوع، حتَّى أنناً اعتقدنا أنَّهُ يَسُوعُ . أمَّا هُوَ فبعدَ أنْ أيقظنَا أخذ يُفتِّشُ لِيَنظرَ أيْنَ كانَ المُعَلِّمُ . لذلِكَ تعَجَّبْنا وأجبنا: أنتَ يَا سيِّدُ هُوَ مُعَلِّمُنا . أنسِيتنا الآن؟.** [1]

ترجمة : یهوذا هغه کوټې ته ننوت له کومې نه چې حضرت عیسی پورته کړل شو او شاګردان ټول ویده وو الله یو عجیب کار وکولو دا یهوذا نومي سړی په خبرو کې او په مخ کې بدل شو داسې شو لکه حضرت عیسی تردې چې مونږ (هغه شاګردانو یې ویل چې په همدې کوټه کې ویده وو) یقین وکولو چې همدا حضرت عیسی دی او هغه چې وروسته مونږ را ویښ کړو او شروع یې وکوله پوښتنه یې کوله چې معلم (حضرت عیسی ) څه شو؟ مونږ دده دې کار ته حیران شوو او مونږ ورته ویل : دا ته زمونږ معلم یې ولې مونږ اوس نه پېژنې؟

[1] انجیل برنابا الاصحاح

په پورتنيو اقوالو کې چې هر يو صحيح وي نو حضرت عيسى الله اسمان ته پورته کړو او د رسول الله ﷺ د احاديثو مطابق به په آخره زمانه کې بېرته را ښکته کيږي او دا را ښکته کېدل يې د قيامت له لويو نښو څخه دي د خليفة مهدي په وخت کې به را ښکته شي او دجال به ووژني دده په وخت کې به ياجوج ماجوج را خپاره شي او دى به لا ژوندى وي هغه به الله هلاک کړي له هغه نه وروسته به خلک په ارام سره ژوند وکوي او هېڅوک به له چا سره دښمني نه کوي په ټوله دنيا به يوازينى دين اسلام حاکم شي او په ټوله زمکه کې به يوازې د يو الله عبادت کيږي .

# د حضرت عیسی د را ښکته کېدلو دلائل

د حضرت عیسی په راښکته کېدلو باندې ګڼ شمېر دلائل موجود دي هم قرآني آیتونه او هم احادیث او هم د علماوو اقوال او نظریات د مثال په ډول :

## قرآني آیتونه

الله فرمایي :

وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللهِ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِنْهُ مَا لَهُمْ بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلاَّ اتِّبَاعَ الظَّنِّ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا * بَلْ رَفَعَهُ اللهُ إِلَيْهِ وَكَانَ اللهُ عَزِيزًا حَكِيمًا * وَإِنْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلاَّ لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا .[1]

ترجمة : او د دوی دا خبره چې مونږ مسیح عیسی د مریم زوی قتل کړو حال دا چې هغه یې نه قتل کړو او نه یې په دار وځړولو لکن هغه کار په دوی باندې مشتبه شوه او هغه کسان چې په دې کې یې اختلاف کړی دی هغوی ته پکې شک دی او پدې اړه علم نلري دوی صرف د ګمان پیروي کوي او هغه یې په رښتیا سره نه دی وژلی بلکه هغه الله خپل لوري ته پورته کړو الله غالب او د حکمت خاوند دی او له اهل کتابو څخه داسې څوک نشته مګر په ده باندې به ایمان راوړي د هغه د مرګ نه وړاندې او د قیامت په ورځ به (عیسی هم) په دوی باندې ګواه وي .

[1] سورة النساء آیة ۱۵۷ : ۱۵۹

د آيت معنى داده چې په هغه وخت کې چې په زمکه باندې ځومره يهود او نصارا موجود وي هغه به په ده باندې ايمان راوړي کله چې دى په آخره زمانه کې راښکته شي .

ابن کثير  ددې آيت نه لاندې ليکي :

**والضمير في قوله {قبل موته} عائد على عيسى عليه السلام، أي : وإن من أهل الكتاب إلا ليؤمنن بعيسى، وذلك حين ينزل إلى الأرض قبل يوم القيامة على ما سيأتي بيانه، فحينئذ يؤمن به أهل الكتاب كلهم لأنه يضع الجزيةَ ولا يقبل إلا الإسلام.** [1]

ترجمة : په قبل موته کې ضمير راجع دى حضرت عيسى  ته معنى يې داده چې له اهل الکتاب نه به په هغه وخت کې په زمکه کې څوک پاتې نشي مګر په ده باندې به ايمان راوړي او دا به په هغه وخت کې چې وي چې دى زمکې ته را ښکته شي تر قيامت وړاندې لکه چې وروسته به يې بيان راشي پدې وخت کې به اهل الکتاب ټول په ده باندې ايمان راوړي ځکه دى به جزيه لرې کړي او په دينونو کې به صرف اسلام قبلوي .

په بل ځاى کې الله  فرمايي : **وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا إِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّونَ * وَقَالُوا أَآلِهَتُنَا خَيْرٌ أَمْ هُوَ مَا ضَرَبُوهُ لَكَ إِلَّا جَدَلًا بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُونَ * إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ أَنْعَمْنَا عَلَيْهِ وَجَعَلْنَاهُ مَثَلًا لِّبَنِي إِسْرَائِيلَ * وَلَوْ نَشَاء لَجَعَلْنَا مِنكُم مَّلَائِكَةً فِي الْأَرْضِ يَخْلُفُونَ * وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُونِ هَذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ .** [2]

ترجمة :او کله چې د مريم د زوى په اړه مثال راوړل شو نو ستا قوم ورڅخه اعراض وکولو او ويې ويل آيا دا زمونږ معبودان ښه دي او که هغه هغوى تاته د لانجې نه بغير بل مثال نه دى

[1] تفسير القرآن العظيم
[2] سورة الزخرف آية ٥٧:٦١

ویلی بلکه هغوی لانجه من دي هغه (عیسی) نه دی مګر یو بنده دی مونږ وربانديْ انعام کړی دی او هغه مو د بني اسرائیلو لپاره یوه نمونه جوړه کړېده او که زمونږ خوښه شي مونږ به ستاسې په ځای باندې ملائکې وګرځوو چې په زمکه کې خلافت وکوي، او دا (عیسی) د قیامت لپاره یوه نښه ده پس د هغه په اړه شک مه کوه او زما متابعت کوه دا نیغه لاره ده .

حضرت عبد الله بن عباس فرمايي : " وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِلسَّاعَةِ قَالَ : هُوَ خُرُوجُ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ عَلَيْهِ السَّلَام قَبْلَ يَوْمِ الْقِيَامَةِ. [1]

ترجمة : وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِلسَّاعَةِ (دا د قیامت علامه ده) دا د حضرت عیسی را وتل دي تر قیامت وړاندې یعني ددینه مطلب دادی چې دی به تر قیامت وړاندې راوزي او را ښکاره کیږي به .

امام قرطبي فرمايي : وقرأ ابن عباس وأبو هريرة و قتادة و مالك بن دينار و الضحاك : وإنه لعَلَمٌ للساعة ، بفتح العين واللام . أي : أمارة . [2]

ترجمة : او حضرت ابن عباس ،حضرت ابو هریره ،حضرت قتادة مالک بن دینار، امام ضحاک دا لفظ لعَلَمٌ للساعة لوستلی دی یعني د قیامت نښه .

په بل ځای کې الله فرمايي : وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلاً وَمِنَ الصَّالِحِينَ . [3]

ترجمة : او له خلکو سره به خبرې کوي په زانګو کې (د معجزې په ډول) او په مینځني عمر کې (چې

[1] رواه الامام احمد
[2] تفسير القرطبي
[3] سورة آل عمران آية ٤٦

تر ٤٠ کالو لوړ وي) او دا له نیکانو څخه به وي .

د زانګو د حالت په اړه یې د خبرو واقعه مونږ ته الله بیان کړیده چې ده په زانګو کې خبرې کولې او ویل یې چې زه د الله بنده یم .... خو د کهولت په وخت کې خبرې به وروسته کوي کله چې د قیامت نه لږ وړاندې را ښکاره شي پدې اړه امام طبري له ابن زید څخه نقل کړي دي چې هغه فرمایي : **قد كلمهم عيسى في المهد ، وسيكلمهم إذا قتل الدجال وهو يومئذ كهل .** [1]

ترجمة : او عیسی له دوی سره په زانګو کې خبرې وکولې او له دوی سره به بیا خبرې هغه وخت کوي چې دجال مړ کړي او عیسی به پدې وخت کې د کهولت په دوره کې وي .

نو پدې آیتونو کې پدې باندې دلیل موجود دی چې حضرت عیسی به په آخره زمانه کې را ښکته کیږي.

## نبوي احادیث

پدې اړه احادیث ډیر زیات دي زه تریې یو څو مشت نمونه خروار ستاسې خدمت ته ړالی کوم .

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَيُوشِكَنَّ أَنْ يَنْزِلَ فِيكُمْ ابْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا عَدْلًا، فَيَكْسِرَ الصَّلِيبَ ، وَيَقْتُلَ الْخِنْزِيرَ ، وَيَضَعَ الْجِزْيَةَ ، وَيَفِيضَ الْمَالُ حَتَّى لَا يَقْبَلَهُ أَحَدٌ ، حَتَّى تَكُونَ السَّجْدَةُ الْوَاحِدَةُ خَيْرًا مِنْ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا .** [2]

---

[1] جامع البیان
[2] رواه البخاري و مسلم

ترجمة : زما د په هغه ذات قسم وي چې زما نفس يې په لاس کې دی چې په تاسې کې به د حضرت مريم زوی حاکم او عادل را ښکته کيږي صليب به ماتوي او خنزير به وژني جزيه به مقرره کړي مال به خلکو ته ورکوي تردې چې داسې وخت به راشي چې څوک به مال نه اخلي تردې چې يوه سجده به تر دنيا او هغه شي نه غوره وي چې په دنيا کې دي او حضرت ابي هريره ددې حديث نه وروسته فرمايل که پدې اړه ستاسې خوښه وي نو دا آيت ولولئ **وَإِنْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا.**

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **"الأنبياء إخوة لعلات، أمهاتهم شتَّى ودينهم واحد، وأنا أولى الناس بعيسى ابن مريم، لأنه لم يكن بيني وبينه نبي، وإنه نازل – (دا اوږد حديث دی بيا مخکې رسول الله ﷺ فرمايي) ويهلك الله في زمانه المسيح الدَّجَّال ثم تقع الأمانةعلى الأرض؛ حتى ترتع الأسود مع الإبل، والنمار مع البقر، والذئاب مع الغنم، ويلعب الصبيان بالحيَّات لا تضرهم .** [1]

ترجمة : انبياء ټول علاتي ورونه دي (چې موراني يې بدلې او پلار يې يو وي) موراني (شريعتونه) يې بدل دي او دين يې يو دی او زه حضرت عيسی ته تر ټولو خلکو ډېر ور نېږدې يم ځکه زما او د هغه په مينځ کې بل نبي نشته او هغه را ښکته کېدونکی دی د هغه په زمانه کې به دجال هلاکيږي بيا به په زمکه کې امانت خپور شي تردې چې زمريان او اوښان به سره ګډ خوراک کوي ، پړانګان او غوايه به سره شريک خوراک کوي همدارنګه ليوان به له مېږو سره خوراک کوي ماشومان به له مارانو سره لوبې کوي او دوی ته به ضرر نه رسوي .

---

[1] **رواه الامام احمد**

حضرت جابر بن عبد الله فرمايي ما له رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې فرمايل يې : **لاَ تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي يُقَاتِلُونَ عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، فَيَنْزِلُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ عليه السلام فَيَقُولُ أَمِيرُهُمْ: تَعَالَ صَلِّ لَنَا، فَيَقُولُ: لاَ إِنَّ بَعْضَكُمْ عَلَى بَعْضٍ أُمَرَاءُ تَكْرِمَةَ اللهِ هَذِهِ الأُمَّةَ.** [1]

ترجمة : همېشه به زما د امت يوه طائفه وي چې په حق باندې به جنګ کوي ښکاره به وي د قيامت تر ورځې پورې بيا به حضرت عيسى را ښکته شي د دوى امير به ورته وايي : راشه مونږ ته جمع راکړه هغه به ورته ووايي نه په تاسې کې ځينې ستاسې په ځينې نورو باندې اميران دي دا د الله عزت دى چې دې امت ته يې ورکړى دى .

په بل حديث کې رسول الله ﷺ فرمايي : **يَخْرُجُ الدَّجَّالُ فِي أُمَّتِي فَيَمْكُثُ أَرْبَعِينَ، لاَ أَدْرِي أَرْبَعِينَ يَوْمًا أَوْ أَرْبَعِينَ شَهْرًا أَوْ أَرْبَعِينَ عَامًا، فَيَبْعَثُ اللهُ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ كَأَنَّهُ عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُودٍ فَيَطْلُبُهُ فَيُهْلِكُهُ، ثُمَّ يَمْكُثُ النَّاسُ سَبْعَ سِنِينَ لَيْسَ بَيْنَ اثْنَيْنِ عَدَاوَةٌ، ثُمَّ يُرْسِلُ اللهُ رِيحًا بَارِدَةً مِنْ قِبَلِ الشَّأْمِ فَلاَ يَبْقَى عَلَى وَجْهِ الأَرْضِ أَحَدٌ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِنْ خَيْرٍ أَوْ إِيمَانٍ إِلاَّ قَبَضَتْهُ ... الحديث** . [2]

ترجمة : را بهر به شي دجال زما په امت کې او څلوېښت به پاتې شي خبر نه يم چې څلوېښت ورځې که څلوېښت مياشتې او که څلوېښت کلونه بيا به الله حضرت عيسى بن مريم را وليږي هغه به په شکل او قيافه کې لکه حضرت عروة بن مسعود داسې وي هغه به دجال مړ کړي بيا به په خلکو کې اوه کاله پاتې شي داسې اوه کاله به وي چې د دوو په مينځ کې به هېڅ ډول دښمني نه وي بيا به الله د شام له خوا يو يخ باد را پورته کړي د

---

[1] رواه الامام مسلم
[2] رواه مسلم

چا پــه زړه کې چې يــوه ذره د خيــر او د ايـمـان وي چې دا بـــاد پــرې ولــګـيـږي هغه بــه ټـول وفــات کړي .

# د علماوو اقوال

امام طبري چې کله پدې مسئله کې اختلاف ذکر کړی دی نو بیا یې فرمایلي دي : **وأولى هذه الأقوال بالصحة عندنا قول من قال : معنى ذلك : إني قابضك من الأرض ورافعك إلي لتواتر الأخبار عن رسول الله صلى الله عليه وسلم أنه قال : ((ينزل عيسى ابن مريم فيقتل الدجال))** . [1]

ترجمة : او پدې ذکر شویو اقوالو کې غوره قول او صحیح دادی چې هغه وایي ددې آیت **اني متوفيک و رافعک الی** معنی داده چې زه تا له زمکې نه خپل لوري ته پورته کوم ځکه پدې اړه د رسول الله ﷺ څخه متواتر احادیث راغلي دي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي : عیسی به را ښکته کیږي او دجال به وژني .

امام ابن کثیر فرمایي : **وقد تواترت الأحاديث عن رسول الله ε أنه أخبر بنزول عيسى عليه السلام قبل يوم القيامة إماماً عادلاً ، وحكماً مقسطاً.** [2]

ترجمة : او له رسول الله ﷺ څخه پدې اړه متوتر احادیث راغلي دي چې رسول الله ﷺ خبر ورکړی دی چې حضرت عیسی به تر قیامت وړاندې د عادل امام په توګه راوزي او انصاف کونکی حاکم به وي .

مشهور عالم صدیق حسن خان وروسته لدې چې د حضرت عیسی د نزول په اړه یې احادیث ذکر کړي

[1] جامع البيان لامام التفسير حضرت طبري
[2] تفسير ابن كثير

دي فرمايي : **جميع ما سقناه بالغ حدَّ التواتر كما لا يخفى على من له فضل اطِّلاع . الإذاعة لما كان وما يكون بين يدي الساعة**

ترجمة : دا ټومره چې مونږ ياد کړل دا تول د تواتر حد ته رسېدلي دي لکه دا چې له هغه چا څخه پټه نه ده چې څوک غوره خبر لري .

شيخ الحديث امام محمد انور شاه کشميري پدې اړه يو کتاب ليکل دی التصريح بما تواتر في نزول المسيح او په هغه کې يې ډېر احاديث را تول کړي دي چې دا د حضرت عيسی د را ښکته کېدو خبر ورکوي او دا متواتر دي .

صاحب عون المعبود فرمايي : **تواترت الأخبار عن النبي ﷺ في نزول عيسى بن مريم من السماء بجسده العنصري إلى الأرض عند قرب الساعة ، وهذا هو مذهب أهل السنة .** [1]

ترجمة : له رسول الله ﷺ نه متواتر احاديث راغلي

دي چې د حضرت عيسی بن مريم له اسمانه د خپل جسد سره قيامت ته په نېږدې وخت کې د را ښکته کېدو خبر ورکوي او دا د اهل السنة مذهب دی .

علامه احمد محمد شاکر فرمايي : **نزول عيسى عليه السلام في آخر الزمان مما لم يختلف فيه المسلمون ، لورود الأخبار الصحاح عن النبي صلى الله عليه وسلم بذلك ، وهذا معلوم من الدين بالضرورة ، لا يُؤمِنُ من أنكره.** [2]

ترجمة : د حضرت عيسی را ښکته کېدل په آخره زمانه کې داسې مسئله ده چې مسلمانانو پکې اختلاف نه دی کړی ځکه پدې اړه صحيح احاديث راغلي دي له رسول الله ﷺ څخه او دا خامخا په

[1] عون المعبود
[2] د تفسير طبري حاشيه

ښکاره سره معلومه ده هغه څوک چې لدې نه انکار وکوي مؤمن نشي پاتې کېدلی .

شيخ الباني فرمايي : **اعلم أن أحاديث الدجال ونزول عيسى عليه السلام متواترة يجب الإيمان بها** .[1]

ترجمة : پدې پوه شه چې د دجال احاديث او د حضرت عيسى د را ښکته کېدلو احاديث متواتر دي ايمان راوړل وربانديې لازم دي .

## د حضرت عيسى د راوتلو حالت

حضرت عيسى چې په كوم حالت كې راوزي دا به داسې وخت وي چې مسلمانانو به په نصاراوو باندې غلبه حاصله كړې وي او لوى جنګ به تېر شوى وي او د القسطنطينية ښار به يې په دريم ځل باندې فتح كړى وي كله چې مسلمانان ددې ښار د فتح په خوشحالۍ باندې خوشحال وي او د غنيمتونو تقسيم لا شوى نه وي شيطان به په درواغو باندې اواز وكوي چې دجال ستاسې كورونو ته راغلى دى مسلمانان به له قسطنطينية څخه دمشق ته راشي ځكه د مسلمانانو مشران او لويه قوه به په دمشق كې وي پدې وخت كې به په رښتيا سره دجال را بهر شي او لويه فتنه به جوړه شي مسلمانان به له دجال نه سخت تنګ شي لكه د دجال د بحث په برخه كې چې تېر شول په ټوله دنيا به را وګرځي يوازې مكې مكرمې او مدينې منورې ته به د ننوتلو وس پيدا نه كړي دجال به د شام شاوخوا علاقې ټولې تر خپلې ولكې لاندې راولي او په مسلمانانو به دائره په ورو ورو تنګوي پدې وخت كې به الله حضرت عيسى را ښكته كړي او هغه به د مسلمانانو د لښكر مشر شي دجال به قتل كړي او مسلمانانو ته به ووايي :

---

[1] **حاشية شرح الطحاوية**

ستاسې خوښه چې تاسې څه غواړئ یا به الله د دجال په لښکر باندې له اسمان څخه عذاب نازل کړي او ختم به یې کړي ، یا به یې په زمکه ننباسي او یا به د دوی سلاح لتاسې څخه ونیسي دوی به تاسې نشي قتل کولی او تاسې ته به اختیار درکړي چې دوی قتل کړئ کومه یوه مو خوښه ده؟ مسلمانان به ورته ووايي چې مونږ دا غواړو چې مونږ یې ووژنو پدې وخت کې به مسلمانانو ته الله قدرت ورکړي او د یهودو په زړه کې به رعب ور واچوي او مسلمانان به د دوی سلاح را اخلي او دوی به وربانديې وژني او دجال خو چې کله حضرت عیسی وینې ویلي کیږ ي به که یې حضرت عیسی قتل نه کړي همداسې یې پریږید تر هغه وخته پورې به ویلي شي ترڅو ختم شي لکن حضرت عیسی به وار وربانديې مخکې کړي او هغه به قتل کړي .

## حضرت عیسی به چېرته او څنګه را ښکته کیږي؟

د حضرت عیسی را ښکته کېدل به د دمشق د ښار په شرقي لوري کې به یوه سپینه مناره وي په هغه ځای باندې وي دوه رنګینې جامې به یې وي چې لکه د زعفران داسې رنګ به ورکړل شوی وي لاسونه به یې د فرښتو په وزرونو باندې ایښي وي را ښکته به شي امام ابن کثیر فرمايي : **الأشهر في موضع نزوله أنه على المنارة البيضاء الشرقية بدمشق ،ينزل وقد أقيمت الصلاة فيقول له إمام المسلمين: يا روح الله ،تقدم، فيقول : تقدم أنت فإنها أقيمت لك .**

ترجمة : د هغه د را ښکته کېدلو په اړه مشهوره خبره داده چې هغه به په سپینه شرقي مناره باندې را ښکته شي په دمشق کې پداسې وخت کې به را ښکته شي چې مونځ ولاړ وي او دا جمع د هغه مجاهدینو وي چې د دجال سره جنګ ته یې ملا تړلې

وي د مسلمانانو امام به ورته ووايي : يا روح الله وړاندې شه (جمع راکړه) دی مبارک به وايي ته مخ ته شه اقامت ستا لپاره ويل شوی دی .

نو بيا به د مسلمانانو امام مخکې شي مخکې پدې اړه اقوال تېر شول چې دا امام به حضرت مهدي وي او حضرت عيسى به ورپسې شا ته ودريږي او مونځ به وکوي .

ابن کثير ددې منارې په اړه فرمايي : **وقد جدد بناء المنارة في زماننا في سنة 741ه من حجارة بيض، وكان بناؤها من أموال النصارى الذين حرقوا المنارة التي كانت مكانها .ولعل هذا يكون من دلائل النبوة الظاهرة ،حيث قيض الله بناء هذه المنارة البيضاء من أموال النصارى حتى ينزل عيسى ابن مريم عليها فيقتل الخنزير ،ويكسر الصليب، ولا يقبل منهم جزية.**

ترجمة : او ددې منارې يو ترميم زمونږ په زمانه کې وشو په کال ٧٤١هجري کې د سپين کاڼي څخه جوړه شوه او دا جوړول يې د نصاراوو په مال سره وشوه کومو چې هغه مناره وسوزوله چې ددې په ځای ولاړه وه او کېدای شي چې دا د رسول الله ﷺ د نبوت د ښکاره نښو څخه وي چې الله دا مناره د نصاراوو له مال څخه جوړه کړه ترڅو حضرت عيسى (چې د دوی پيغمبر وو) ورباندې را ښکته شي خنزير به قتل کړي صليب به مات کړي او جزيه به نه قبلوي .

دا مناره د ښار په دروازه کې جوړه ده ما په سترګو نه ده ليدلې خو په عکسونو کې مې ليدلې ده چې دروازه ده او د دروازې په څنګ کې مناره جوړه ده او دا د ښار دروازه ده او هلته په خلکو کې هم دا خبره مشهوره ده چې حضرت عيسى به پدې مناره باندې را ښکته کيږي او ځينې داسې روايات هم شته چې حضرت عيسى به په

دمشق کې د مسجد اموي په یوه مناره باندې را ښکته کیږي و الله اعلم .

## حضرت عیسی په زمکه کې څومره پاتې کیږي؟

عیسی چې کله را ښکته شي نو په ځینې روایاتو کې راغلي دي چې څلویښت کاله به پاتې کیږي لکه رسول الله ﷺ چې د حضرت عیسی په اړه په یوه اوږده حدیث کې فرمایل : **فیمکث أربعین سنة ثم یتوفی ویصلي علیه المسلمون** .[1]

ترجمة : بیا به حضرت عیسی پاتې کیږي په زمکه کې څلویښت کاله بیا به وفات شي او مسلمانان به پرې د جنازې مونځ وکوي .

او په ځینې روایاتو کې اوه کاله راغلي دي لکه پدې اړه مختلف احادیث مخکې تېر شول .. اوس پوښتنه دلته داده چې په ځینې ځایونو کې څلویښت او په ځینې کې اوه دا سره ټکر نه دي؟ امام ابن کثیر ددې نه ځواب کړی دی هغه فرمایي : په کومو ځایونو کې چې څلویښت کاله راغلي دي دا په زمکه باندې د حضرت عیسی ټول عمر یادوي او په کوم ځای کې چې اوه کاله راغلي دي دا د حضرت عیسی له را ښکته کېدلو وروسته وخت یادوي او حضرت عیسی چې کله پیدا شو هغه وخت یې په زمکه باندې ۳۳ کلونه تېر کړل بیا پورته کړل شو نو چې کله بېرته را ښکته شي اوه کاله به نور هم تېر کړي نو څلویښت به پوره شي . **والله اعلم**

[1] رواه الامام احمد

# د حضرت عیسی له راښکته کېدلو څخه حکمت

پوښتنه داده چې پیغمبران خو زیات وو ولې حضرت عیسی په آخره زمانه کې را ښکته کیږي؟ ولې بل کوم پیغمبر د را ښکته کېدلو لپاره انتخاب نه شو ددې لپاره علماوو مختلفې رایې وړاندې کړي دي او یوه قوي رایه خو دا هم ده چې دا د الله حکمت دی د هغه به پکې خپل حکمت وي د هماغه حکمت له مخې یې حضرت عیسی تعین کړو او دا به را ښکته کوي او ځینې علماوو ورته حکمتونه بیان کړي دي د مثال په ډول :

ځینې علماء فرمایي : د حضرت عیسی په را ښکته کېدلو کې په یهودو باندې رد دی چې دوی وایي مونږ عیسی قتل کړی دی نو حضرت عیسی به په آخره زمانه کې را ښکته شي او د دوی مشر دجال به ورته ووژني او دوی ته به ښکاره شي چې دوی تر اوسه پورې درواغ ویل دوی حضرت عیسی قتل کړی نه وو د حافظ ابن رجب له نظره هم دا قول غوره دی . [1]

ځینې علماء فرمایي : کله چې په انجیل کې حضرت عیسی د حضرت محمد ﷺ د امت فضیلتونه ولیدل نو یې خوښ شو او له الله نه یې وغوښتل چې دی هم د رسول الله ﷺ له امت څخه شي الله یې دا دعا قبوله کړه او دی یې وساتلو د رسول الله ﷺ د امت په آخر وخت کې به را ښکته شي او د رسول الله ﷺ په شریعت کې چې کومې خبرې زړې شوې او له خلکو هېرې شوې وی دی به یې بېرته را تازه کړي .

---

[1] فتح الباري

ځینې علماء فرمايي : حضرت عیسی وفات شوی نه دی بلکه هغه ژوندی اسمان ته پورته کړل شوی دی نو هر ژوندی انسان باید وفات او په زمکه کې خښ شي او بیا له زمکې نه د قیامت لپاره پورته شي نو داسې به حضرت عیسی د قیامت نه وړاندې دنیا ته را ښکته کړل شي او دلته به وفات او بیا به دفن شي .

ځینې علماء فرمايي : حضرت عیسی په آخره زمانه کې ددې لپاره را ښکته کول کیږي چې د نصاراوو دا خبره غلطه ثابته کړي چې دوی به تر اوسه پورې ویل چې حضرت عیسی د الله زوی دی هغه به را ښکته شي او د دوی پدې باطلو خبرو به رد وکوي او خلک به ټول اسلام ته ور وغواړي او په ټوله زمکه باندې به یوازې د اسلام مقدس بیرغ ورپوي .

او یا دا چې رسول الله ﷺ پخپله هم فرمایلي دي چې پیغمبران ټول سره ورونه دي خو زه حضرت عیسی ته نیږدې یم ځکه زما او دده په مینځ کې بل نبي نشته نو ددې تعلق له امله کېدای شي الله د بیا را ښکته کولو لپاره همدی انتخاب کړی وي .

## په حضرت عیسی باندې مې سلام وایاست

رسول الله ﷺ خپل ټول امت ته دا امانت پریښی دی که چیرته حضرت عیسی پداسې وخت کې را ښکته شو چې زه نه وم نو زما سلام به پرې وایاست حضرت ابو هریره فرمايي رسول الله ﷺ فرمایل : **یوشك المیسح عیسی بن مریم أن ینزل حكما قسطا وإماما عدلا فیقتل الخنزیر**

ويكسر الصليب وتكون الدعوة واحدة فأقرئوه أو أقرئه السلام من رسول الله وأحدثه فيصدقني . [1]

ترجمة : نېږدې ده چې مسيح عيسى بن مريم به د منصف حاكم او عادل امام په توګه را ښكته شي خنزير به مړ كړي صليب به مات كړي او دعوة به صرف يو شي سلام ورباندې واياست او يا يې وويل سلام پرې وايه (حضرت ابو هريره ته يې فرمايل) د رسول الله ﷺ له لوري او زما خبرې ورته وكوه هغه به زما تصديق وكوي .

بيا چې كله د حضرت ابو هريره بيماري سخته شوه هغه پوه شو چې وفات كيږي نو يې وفرمايل : **أقرئوه مني السلام** (زما له لوري ورباندې سلام وواياست) .

په يو بل روايت كې حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إني لأرجو إن طال بي عمر أن ألقى عيسى بن مريم فإن عجل بي موت فمن لقيه منكم فليقرئه مني السلام.**

ترجمة : زما اميد دى كه الله زما عمر اوږد كړي چې زه د حضرت عيسى بن مريم سره ملاقات وكوم خو كه مرګ په ما باندې بيړه وكوله نو چې پتاسې كې څوک ورسره ملاقي شول نو زما سلام د پرې وايي ..

نو رسول الله ﷺ دا سلام ټول امت ته پريښى دى چې كله حضرت عيسى را ښكاره شي څوک د د رسول الله ﷺ له لوري ورباندې سلام ووايي .

---

[1] رواه الامام احمد



# يــأجـوج ومــأجـوج

د يـاجـوج او مـاجـوج پـه اړه د عربـيـت د علمـاوو مـختـلـف اقـوال دي يـو ډېـر غـوره كـړل شوى قـول يـې دادى چې دا دواړه عجمي نـومـونـه دي او د مـعنـى پـه اړه يـې علمـاء فـرمـايـي : **هما قبيلتان من ولد يافث بن نوح وقد بنى ذو القرنين سَدًّا حجزهم وراءه** (دا دواړه قـبـيـلـې لـه اولادې د يـافـث بـن نـوح نـه دي او دوى ذو الـقـرنـيـن د يـوه بـنـد شاتـه بـنـدې كـړي دي) .

دا يـاجـوج مـاجـوج د چـا نـسل دى پـدې اړه هم د علمـاوو مـخـتـلـفې رايـې دي :

لـمړى رايــه :

لـكه مـخكې چې تـېـر شول دا د حضرت آدم لــه اولاد څخه دي د حضرت نـوح د يـافـث نـومـي زوى اولاده ده .

دوهمـه رايــه :

يـاجـوج د اهل الـتـرک څخه دي او مـاجـوج د ديـلـم لـه قـبـيـلـې څخه دي .

دريـمـه رايــه

د حضرت كـعب بـن احبـار قـول دى هغه فـرمـايـي : **أنهم من ولد آدم من غير حواء وذلك أن آدم عليه السلام نام فاحتلم فامتزجت نطفته بالتراب فخلق الله منه يأجوج ومأجوج .**

تـرجـمة : دوى د حضرت آدم اولاد دى لـكن لـه حوا څخه نـه دى هغه قصه داسې وه چې آدم ويـده وو احتـلام يـې وشـو نـطفـه يـې لـه خـاورې سره گـډه شوه ورڅخه يـاجـوج مـاجـوج پـيـدا كـړل الله .

او دا چې د حضرت آدم اولاد دی ددې رایې تائید ځینې احادیث هم کوي لکه حضرت عبد الله بن عمر فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إن يأجوج ومأجوج من ولد آدم وأنهم لوأرسلوا إلي الناس ، لأفسدوا عليهم معايشهم ولن يموت منهم أحد إلا ترك من ذريته الفاً فصاعداً .** [1]

ترجمة : بېشکه یاجوج او ماجوج د آدم له اولاد څخه دي او که دا خلکو ته را پرېښودل شي نو د دوی ژوندونه به ور خراب کړي او په دوی کې یو هم نه مړ کیږي مګر تر زرو پورې او تر دې زیات نسل شا ته په ځان پسې پرېږدي .

دا رایه پکې ډېرو علماوو اخیستې چې دا د حضرت نوح د یافث نومي زوی اولاد دی نو ددې سره بیا دا خبره هم صحیح کېدلی شي چې دا د ترک او مغولو څخه وي او پدې اړه روايات هم دي لکه حضرت ابو هريره چې فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **ولد لنوح سام وحام ويافث فولد سام العرب وفارس والروم والخير فيهم، وولد يافث يأجوج ومأجوج والترك والصقالبة ولا خير فيهم، وولد حام القبط والبربر والسودان .**

ترجمة : د نوح سام ، حام او یافث زامن پیدا شول د سام نه عرب ، فارس او د روم خلک پیدا شول او خیر په همدې خلکو کې دی د یافث نه یاجوج او ماجوج ، ترکان او صقالبة پیدا شول او په دوی کې خیر نشته او د حام نه قبطیان ، بربر او سودانیان پیدا شول .

په شروع کې کله چې د نوح قوم د بتانو عبادت کاوه نو الله حضرت نوح د دوی د لارښونې لپاره را ولېږلو نوح په خپل قوم کې ۹۵۰ کاله تبلیغ وکولو او دوی ته یې نصیحت وکاوه چې د

[1] اشراط الساعة للاستاذ يوسف بن عبد الله الوابل

بتانو عبادت پرېږدي لکن هغوی دده خبره ونه منله او ډېر کم کسان داسې وو چې هغوی له کفر نه توبه وويسته او د حضرت نوح سره په سمه لاره روان شول.

د نوح او د حضرت آدم په مينځ کې په سلګونو کلونه وو يو کس له رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکوله چې آيا حضرت آدم نبي وو؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : هو .. بيا هغه کس پوښتنه وکوله د حضرت آدم او د حضرت نوح په مينځ کې څومره وخت وو رسول الله ﷺ وفرمايل : لس پېړۍ .

همدارنګه حضرت عبد الله بن عباس فرمايي : **كما بين آدم ونوح عشرة قرون كلهم على الإسلام .**

ترجمة : لکه د آدم او نوح په مينځ کې چې لس پېړۍ وې او ټولې په اسلام وې يعني دا پېړۍ ټولې په اسلام کې تېرې شوې د حضرت آدم لارښونې په دوی کې پاتې وي او له يو نسل نه بل نسل ته ميراث پاتې کېدلې او شيطان پکې لاره نه وه پيدا کړې چې دوی ګمراه کړي .

بيا چې کله د حضرت نوح د راتللو وخت شو پدې وخت کې شيطان دوی ته لاره ور پيدا کړه چې دوی يې د پاکې لارې نه وګرځول او د بتانو په عبادت يې آخته کړل پنځه نېکان خلک وو چې خپله يې هم د الله عبادت کاوه او نور خلک يې هم ور ته را بلل ود، سواع، يغوث، يعوق او نسر نومونه يې وو کله چې دوی وفات شول هغه کسان چې د دوی په لاره روان وو هغوی وويل : که چېرته مونږ د دوی شکلونه جوړ کړو نو چې هغوی ته ګورو پدې سره به هر وخت مونږ ته عبادت را په زړه کيږي او په عبادت کې به مو شوق لا زياتيږي او چې کله

یې د دوی مجسمې جوړې کړې نو خلکو د الله عبادت کاوه او دې مجسمو ته یې پدې نظر کتل چې دا د نېکانو خلکو یو یادګار دی تردې چې دا نسل په همدې عقیده کې ختم شو ددې نسل ماشومان بوډاګان او بوډاګان یې وفات شول د بل نسل په ذهنونو باندې شیطان کار وکولو او دوی ته یې په زړونو کې ور واچول چې ستاسې پلرونو د همدې مجسمو عبادت کاوه پدې توګه یې دوی د بتانو په عبادت کې آخته او له سمې لارې کاږه کړل پدې وخت کې الله حضرت نوح د الله له لوري دوی ته د رسول په توګه را ولېږلو او له ده نه مخکې چې راغلي وو هغوی انبیاوو او د انبیاوو کار په خپل قوم کې د یو داعي او لار ښود وو او رسول د هغه څه په رسولو مکلف وو چې الله به ورته ویل حضرت نوح په ښه توګه د خپلې وظیفې د پوره کولو لپاره کار وکولو او خپل قوم ته یې ۹۵۰ کاله نصیحت وکولو او پدې لاره کې یې په دومره اوږده عمر کې نه ستړي کېدونکي هلې ځلې وکولې لکن ډېر کم کسان سمې لارې ته په راتلو سره مشرف شول تردې چې الله ورته وویل : نور ستا په قوم کې داسې څوک نشته چې ایمان راوړي ته کښتۍ جوړه کړه پدې خلکو باندې عذاب راځي او کوم کسان چې مسلمانان دي هغه درسره په کښتۍ کې سپاره کړه په کښتۍ کې نور د هر ډول حیواناتو یوه یوه جوړه ، د یو زوی (کنعان) نه بغیر (چې هغه په ایمان نه وو مشرف شوی) نور د کورنۍ غړي درسره په کښتۍ کې سپاره کړه نو سام، حام او یافث په ایمان مشرف شوي وو دا ورسره په کښتۍ کې سپاره شول او کنعان یې تر آخرې سلګۍ د کفارو په ملګرې کې وو او د نورو کفارو په څېره هغه هم هلاک شو الله ورته هدایت نه وو کړی نو د خپل پلار رسالت هم ورته هېڅ فایده ونه کوله ..

نو په کښتۍ کې په هغه وخت کې مؤمنان کسان ، د حضرت نوح دری واړه زامن او د دوی بیبیانې او د هر ډول حیواناتو څخه یوه یوه جوړه پاتې شوه خو په کښتۍ کې د مسلمانانو سپرو کسانو هېڅ نسل پاتې نشو چې دوی په حق رسېدل د دوی د نسب سلسله ورسره پرې کېدله الله یوازې د حضرت نوح د اولادې د پاتې کېدلو فیصله کړې وه ددې امله خو حضرت نوح ته دوهم آدم ویل کیږي .

نو د نوح د همدې دریو زامنو نه بیا ټوله دنیا ډکه شوه لکه حضرت ابو هریره چې فرمايي رسول الله ﷺ فرمایل : **ولد لنوح سام وحام ويافث فولد سام العرب وفارس والروم والخير فيهم، وولد يافث يأجوج ومأجوج والترك والصقالبة ولا خير فيهم، وولد حام القبط والبربر والسودان .**

ترجمة : د نوح سام ، حام او یافث زامن پیدا شول د سام نه عرب ، فارس او د روم خلک پیدا شول او خیر په همدې خلکو کې دی د یافث نه یاجوج او ماجوج ، ترکان او صقالبة پیدا شول او په دوی کې خیر نشته او د حام نه قبطیان ، بربر او سودانیان پیدا شول .

په پورتني حدیث کې لکه مخکې چې هم تېر شول یاجوج او ماجوج د یافث اولاد یاد کړل شوی دی امام عبد البر خو پدې باندې د اجماع دعوه کړېده او امام ابن حجر د بخاري شریف په شرح فتح الباري کې همدا خبره تائید کړېده .

خو د وخت په تېرېدلو سره ددې نه داسې مخلوق جوړ شو چې ډېر زیات ظلم به یې کاوه په نورو انسانانو به یې تېری کاوه او مختلف ډول کارونه به یې کول خلک ترینه په امن کې نه وو ، د خلکو مالونه په امن کې نه وو او نور یې هم په ژوند کې ډېر مشکلات پیدا کول قرآن کریم مونږ ته د هغه وخت قصه کړېده چې کله ذوی

القرنين په خپل سفر کې د مشرق لوري ته ورسېدو هلته يې يو ډول مخلوق وليدو چې د دوو غرونو په مينځ کې هوسېدل او يوه لاره يې درلوده او په ژبه يې پوهېدل ډېر ګران وو او ډېره سخته ژبه يې ويله هلته يې له يو بادشاه سره ليدل وشول هغه له ده څخه وغوښتل چې له هغه سره مرسته وکوي ترڅو دا ياجوج ماجوج دلته بند کړي او د وتلو لاره يې ده هغه لاره به ورته بند کړي او ددې په بدل کې چې دی څومره مال غواړي نو هغه خلک به يې ددې لپاره ورکړي چې د ياجوج ماجوج له شر او ضرر نه به خلاص شي ذو القرنين له دوی سره دا خبره ومنله او ورته يې وويل : ستاسې مال ته مې ضرورت نشته خو تاسې به راسره د کار مرسته کوئ ذو القرنين عجيبه انجينري استعمال کړه اول يې د وسپنې ټوټې سره را ټولې کړې او دومره يې لوړې کړې چې د غرونو تر سرونو ورسېدلې بيا يې په وسپنه پسې اور بل کړو او سرپ يې پکې تويې کړل ترڅو نوره هم کلکه شي او هغه يې په دې د وسپنو په ديوال باندې ور تويې کړل او پدې توګه يې هغه فرجه چې د دوو غرونو په مينځ کې وه له کوم نه به چې ياجوج ماجوج دنيا ته راوتل هغه بنده کړه هغوی نه دا ديوال سوري کولی شي او نه وربانديې را ختلی شي او هغه قوم يې له شر نه خلاص شو دا واقعه مونږ ته داسې بيان کړېده : ﷲ

حَتَّى إِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ وَجَدَ مِن دُونِهِمَا قَوْمًا لَّا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ قَوْلًا (93)
قَالُوا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ
خَرْجًا عَلَى أَن تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا (94) قَالَ مَا مَكَّنِّي فِيهِ رَبِّي خَيْرٌ
فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا (95) آتُونِي زُبَرَ الْحَدِيدِ حَتَّى إِذَا
سَاوَى بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ قَالَ انفُخُوا حَتَّى إِذَا جَعَلَهُ نَارًا قَالَ آتُونِي أُفْرِغْ عَلَيْهِ
قِطْرًا 96(٩٦) فَمَا اسْطَاعُوا أَن يَظْهَرُوهُ وَمَا اسْتَطَاعُوا لَهُ نَقْبًا (97) قَالَ

**هَذَا رَحْمَةٌ مِّن رَّبِّي فَإِذَا جَاء وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُ دَكَّاء وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقًّا (98) .** [1]

ترجمة : تردې پورې چې د دوو بندونو مينځ ته ورسېدو هلته يې يو داسې قوم پيدا کړو چې په هېڅ خبره نه پوهېدل (بل ډول ژبه يې وه) (هلته مېشته خلکو ورته) وويل اې ذالقرنين بېشکه ياجوج او ماجوج په زمکه کې فساد کونکي دي (کېداى شي چې) مونږ تاته څه مال درکړو ته زمونږ او د هغوى په مينځ کې يو بند جوړ کړې حضرت ذو القرنين ورته وويل هغه چې ماته الله راکړي دي ستاسې له مالي مرستې نه ښه دي زما سره لما سره په خپل قوت سره (د خپلو متو په کار سره) مرسته وکوئ ستاسې او د هغوى په مينځ کې به بند جوړ کړم ويل يې ماته د وسپنې ټوټې راوړئ تردې چې هغه د غرونو په مينځ کې برابرې شوې بيا يې وويل چې اور بل کړئ تردې چې هغه گرمه شي بيا يې وويل مس راکړئ چې پرې تويې يې کړم دوى به نه دا وکولى شي چې پدې دېوال را و خيږي او نه به په دې کې سورى وکوي بيا يې وويل دا د الله رحمت دى او کله چې د الله وعده (هغه تاکلى وخت) پوره شي دا به مات کړي بېشکه زما د رب وعده رښتيا ده .

علماء فرمايي په پورتنيو آيتونو کې درى لويې موضوع گانې ذکر کړل شوي دي :

١. ذو القرنين د الله له لوري په رحمت سره يو بند جوړ کړى دى داسې بند دى چې ياجوج او ماجوج هغه شکولى او سورى کولى نشي او نه وربانديې لپاسه را ختلى شي او تر اوسه پورې دوى په همدې عاجزي کې دي او تر څو چې د الله حکم نه وي شوى دوى به همدلته وي او الله به د دوى په راوتلو د قيامت نه لږ وړاندې فيصله

[1] سورة كهف

وکوي او بیا به دوی لدې بند څخه را تېر شي او په دنیا کې به خپاره شي .

۲. داسې وخت به راشي چې دا بند به مات شي او یاجوج ماجوج به ترېنه را بهر شي او په خلکو به دا خپل ژوند فاسد کړي او لکه د بحر موجونه داسې به را بهر شي کله چې ورته د ﷲ حکم وشي .

۳. دوی به پداسې وخت کې را بهر کیږي چې هغه وخت به قیامت را نېږدې شوی وي ﷲ به یاجوج ماجوج او نور ټول خلک حساب ته را ټول کړي.

د یاجوج ماجوج ذکر په قران کریم کې بل ځای هم ﷲ کړی دی هلته ﷲ فرمایي : **وَحَرَامٌ عَلَى قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا أَنَّهُمْ لا يَرْجِعُونَ * حَتَّى إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُمْ مِنْ كُلِّ حَدَبٍ يَنْسِلُونَ * وَاقْتَرَبَ الْوَعْدُ الْحَقُّ فَإِذَا هِيَ شَاخِصَةٌ أَبْصَارُ الَّذِينَ كَفَرُوا يَا وَيْلَنَا قَدْ كُنَّا فِي غَفْلَةٍ مِنْ هَذَا بَلْ كُنَّا ظَالِمِينَ .** [1]

ترجمة : او حرام دي په اهل د هغه کلي چې مونږ هلاک کړی دی بېرته را ګرځېدل تردې چې د یاجوج ماجوج بند را خلاص شي او هغوی د هرې پُښتې نه را بهېدونکي وي او د حق وعده را نېږدې شي بیا د هغه کسانو چې کافران دي سترګې به شخې پاتې شي او وایي هی افسوس دی زمونږ په حال مونږ لدې حالت نه په غفلت کې وو بلکه مونږ ظالمان وو .

چې په غور سره پورتني آیتونو ته هم وګورو له دریو لویو خبرو څخه خبرې کوي .

۱. د ﷲ له لوري هلاک رسېدل هغه کسانو ته چې هغوی کافران وي او په خپل کفر باندې پاتې وي

[1] سورة الانبیاء آیة ۹۵:۹۷

او لـه كفـر نـه رجوع نـه كـوي او سمې لارې تـه ورڅخه نـه را آوړي.

٢. يـاجوج او مـاجوج بـه پـه آخره زمـانـه کې را وزي او بېرتـه بـه داسې هلاكيـږي لـكـه ددوی نـه وړانـدې كـافـران قـومـونـه چې الله هلاكـوي .

٣. د يـاجوج او مـاجوج لـه راوتـلـو وروستـه بـه قـيـامـت را نـږدې وي يـاجوج مـاجوج بـه هلاک شي قـيـامـت بـه راشي هغه كسان چې كفـار لـه دنـيـا تـلـلـي وي د وېـرې نـه بـه يـې ستـرګې شخې پـاتې وي او پـښېمـان بـه وي .

## د يـاجـوج او مـاجـوج پـه اړه احـاديـث

د يـاجوج او مـاجوج ذكـر پـه احـاديـثـو کې هم ډېـر راغـلـی دی زه پـدې وړه رسـالـه کې ټـول نـشم را ټـولـوی مشت نـمـونـه خـروار يـې ستـاسې پـه وړانـدې ايـږدم .

د حضرت ابـي هريـره څخه روايـت شو دی هغه فـرمـايـي رسول الله ﷺ فـرمـايـل : **فتح اليوم من ردم يأجوج ومأجوج مثل هذه وعقد وهيب بيده تسعين** .[1]

تـرجمة : نـن د يـاجوج او مـاجوج لـه بـنـد څخه دومـره ځـای خلاص شو وهيـب پـه خپـلـو ګـوتـو کې د نـوي شمېـره جوړه كـړه (يـعـني بـټـه ګـوتـه يـې د شهادت لـه ګـوتې سره سريـښ كـړه يـوه حلقـه يـې تـرې جوړه كـړه يـو سوری يـې تـرېـنـه جوړ كـړو چې د وړوكـي سوري انـدازه ښكـاره كـوي) .

پـه يـو بـل روايـت کې حضرت ابـو هريـره فـرمـايـي رسول الله ﷺ فـرمـايـل : **إن يأجوج ومأجوج ليحفرون السد كل**

---

[1] **رواه مسلم**

يوم حتى إذا كادوا يرون شعاع الشمس قال الذي عليهم ارجعوا فستحفرونه غدا فيعودون إليه كأشد ما كان حتى إذا بلغت مدتهم وأراد الله عز وجل أن يبعثهم إلى الناس حفروا حتى إذا كادوا يرون شعاع الشمس قال الذي عليهم ارجعوا فستحفرونه غدا إن شاء الله ويستثني فيعودون إليه وهو كهيئته حين تركوه فيحفرونه ويخرجون على الناس فينشفون المياه ويتحصن الناس منهم في حصونهم فيرمون بسهامهم إلى السماء فترجع وعليها كهيئة الدم فيقولون قهرنا أهل الأرض وعلونا أهل السماء فيبعث الله عليهم نغفا في أقفائهم فيقتلهم بها فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم والذي نفس محمد بيده إن دواب الأرض لتسمن شكرا من لحومهم ودمائهم.[1]

ترجمة : بېشکه یاجوج او ماجوج هره ورځ د هغه بند په ختمولو باندې کارکوي چې ذو القرنین د دوی مخې ته جوړ کړی دی تردې چې دوی یې تر دومره پورې پرې کړي چې دوی تر یـنه د لمر شعاع ووینـي بیا هغه کس چې د دوی په سر باندې مقرر دی هغه ورته ووایي بس اوس یې پرېږدئ نور به صبا پکې کار وکوو کله چې صبا دوی ورته راشي نو بېرته هغه هماغسې کلک او محکم وي تردې چې هغه وخت راشي چې الله له هغه بند نه د دوی د راوتلو اراده وکوي نو دوی به هغه بند تر دومره پورې ووهي چې دوی ته د لمر رڼا ترې ښکاره شي هغه کس چې په دوی باندې مقرر وي هغه به ورته ووایي ځئ نور به صبا سوری کړئ **ان شاء الله** په خپله خبره کې استثناء وکوي نو صباء چې ورته راشي هغه په هغه حالت باندې پاتې وي چې دوی پرېښی وو نو لږ چې نور کار پکې وکوي هغه بند به سوری شي دوی به ټول خلکو ته را بهر شي اوبه به ټولې و څښي خلک به ورڅخه په قلا گانو کې پټ شي دوی به غیشی اسمان خوا ته واروي او هغه غیشي به بېرته راګرځي چې وینه به پرې لګېدلې وي دوی به وایي د زمکې په خلکو خو مو

[1] رواه أحمد

خپل زور تېر کړو او دا دي په اسمان کې چې څوک دي هغه مو هم وويشتل الله به پرې يو چينجى مقرر کړي د دوى په شا ګانو کې (**نغف: دُودٌ يكون في أُنوف الإبل والغنم** (د عربي علماء فرمايي نغف يو ډول چينجى دى چې د اوښانو او مېږو (ګډو) په پوزو کې وي) او پدې چينجي سره به دوى ټول هلاک کړي بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : زما د په هغه ذات باندې قسم وي چې زما روح د هغه په لاس کې دى چې د زمکې حيوانات به د دوى په غوښو او وينو چاغ شي .

حضرت زينب بنت جحش  فرمايي رسول الله ﷺ له خوب نه را پاڅېدو او ويې فرمايل : **لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدْ اقْتَرَبَ، فُتِحَ الْيَوْمَ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مِثْلُ هَذِهِ.**

ترجمة : نشته په حقه لا ئق د عبادت مګر يوازې الله دى وېره ده د عربو لپاره دهغه شر نه چې را نېږدې شوى دى نن د ياجوج ماجوج د بند نه دومره ځاى را خلاص شو (ابهامه او سبابه ګوتې يې سره يو ځاى کړې يوه حلقه يې ترې جوړه کړه)

يعني په هغه وخت کې رسول الله ﷺ ويل چې قيامت را نېږدې شوى دى او د ياجوج او ماجوج بند به را خلاص شي ځکه نن پکې يو سورى شوى دى او د هغه سوري اندازه رسول الله ﷺ د بټې ګوتې او د شهادت د ګوتې د يو ځاى کولو او د يوې وړوکې حلقې د جوړولو سره ښکاره کړېده .

ددې حديث نه وروسته حضرت زينب  فرمايي ما ورته وويل : **يا رسول الله أَنَهْلِكُ وفينا الصالحون** ؟ (مونږ به پداسې حالت کې هلاکېږو چې په مونږ کې به نېکان

خلک هم وي؟ رسول الله ﷺ راته وویل : **نعم ، إذا كَثُرَ الْخَبَثُ** . . (هو کله چې خبث زیات شي ) . [1]

رسول الله ﷺ د دوی د فساد یوه نمونه مونږ ته پدې حدیث کې بیانوي رسول الله ﷺ فرمایي : **يَمُرُّ أَوَائِلُهُمْ – قوم يأجوج ومأجوج- عَلَى بُحَيْرَةِ طَبَرِيَّةَ فَيَشْرَبُونَ مَا فِيهَا وَيَمُرُّ آخِرُهُمْ فَيَقُولُونَ لَقَدْ كَانَ بِهَذِهِ مَرَّةً مَاءٌ وَيُحْصَرُ نَبِيُّ اللَّهِ عِيسَى وَأَصْحَابُهُ** [2] .

ترجمة : د دوی د لښکر مخکني خلک به په بحيرة طبيرية باندې راشي په هغه کې چې څومره اوبه وي ټولې به وڅښي او د لښکر آخرني خلک چې پرې راشي وايي به پدې ځای کې یو وخت کې اوبه وې او د الله نبي حضرت عیسی او د هغه ملګري به محاصره کړي.

په یوه اوږده حدیث کې رسول الله ﷺ د یاجوج او ماجوج ډیرې خبرې کړې دي زه یې یوازې ترجمه ستاسې په وړاندې ایږدم .

رسول الله ﷺ فرمایي :

ترجمة : بېشکه یاجوج او ماجوج کیندي (خپل بند سوری کوي) هره ورځ تردې چې دومره یې سوری کړي چې د لمر رڼا ورته ښکاره شي بیا هغه کس چې د دوی په سر مقرر وي هغه ورته وایي ځئ اوس لاړ شئ دا پاتې به سبا سوری کړو دوی لاړ شي چې دوی صبا راځي بیا یې الله هماغه شان جوړ کړي لکه مخکې چې وو او تر هغې نه هم سخت تردې چې د الله اراده وشي چې دوی را بهر کړي نو دی پدې ورځ هم دا سوری کړي تردې چې نېږدې وي چې د لمر

---

[1] رواه البخاري
[2] رواه مسلم

رنا وويني هغه کس چې د دوی په سر وي هغه ورته ووايي ځئ لاړ شئ دا پاتې به سبا سوري کړئ **ان شاء الله** صبا چې ورته دوی راشي نو هغه بند په هغه اندازه سوری پاتې وي چې دوی کړی وي نو لږ کار چې نور پکې وکوي د دنيا په خلکو باندې را بهر شي پدې وخت کې به الله حضرت عيسی ته خبر ورکړي چې ما دنيا ته داسې بندګان در پرېښودل چې هېڅوک يې هم په جنګ سره مقابله نشي کولی نو زما بندګان د طور غره لور ته بوزه الله به ياجوج او ماجوج زمکې ته را پرېږدي او دوی به له هر لوري ځای نه را ښکته کېدونکي وي ټوله زمکه به پټه کړي اوبه به وڅښي له دوی نه به خلک په لويو قلا ګانو کې ننوزي څه مسلمانان به له حضرت عيسی سره غرونو ته لاړ شي او ځينې به په ښارونو کې په لويو لويو قلاګانو کې د ننه حصار پاتې شي او خپل حيوانات او څار وي به دوی ته ور پرېږدي هغه به د دوی خوراک شي او د زمکې اوبه به وڅښي تردې چې دوی به په يو نهر ورځي هغه به مکمل وچ کړي پداسې توګه چې هغه به وچ پرېږدي او د دوی نه شاته چې نور پرې ورځي هغوی به وايي دلته په يو وخت کې اوبه وې د دوی اول خلک به په بُحيرة الطَّبَرِيَّةِ باندې ورشي په هغه کې چې څومره اوبه وي هغه به وڅښي د دوی آخر خلک چې پدې بحر باندې ورځي هغه به وايي يو وخت کې دلته اوبه وې په زمکه کې به خپاره شي بيا به ځي ترڅو جبل الخمر ته ورسيږي او دا د بيت المقدس غر دی هلته به دوی ووايي څوک چې په زمکه کې وي هغه خو مونږ قتل کړل راځئ اوس هغه قتل کړو چې په اسمان کې دي نو بيا به خپل غيشی اسمان لور ته وار کړي هغه چې بېرته زمکې ته راځي نو لکه د وينې داسې نشان به وربانديې لګېدلی وي ترڅو دوی ښه په بلا او فتنه کې ولويږي دوی به ښه خوشحال شي او وايي به څوک چې په زمکه کې وو په هغوی باندې غالب شوو او څوک چې په اسمانونو کې دي هغه مو

هم وويشتل حضرت عیسی او مسلمانان به په غره کې محاصره وي هلته به ددوی حالات په دوی سخت شي بیا به الله د دوی په شا ګانو کې د نغف چینجی پیدا کړي او ټول به پدې توګه سره مړه کړي او داسې به مړه شي لکه یو انسان چې مړ کیږي دوی به یو په بل ور وغورځیږي او ټول به خاموش شي په مسلمانانو کې به خلک یو بل ته سره ووایي څوک به داسې وي چې لاړ شي د دوی حال معلوم کړي چې د دوی اوس څه حال دی؟ یو کس به راشي پداسې حال کې به د دوی لور ته راځي چې دده ګمان وي چې دوی به دی وژني چې وګوري دوی به ټول یو په بل باندې ور پراته او مړه به وي نو په خوشحالي کې به مسلمانانو ته ور چغه کړي : اې مسلمانانو الله ستاسې د دښمن کار خلاص کړی دی خلک به له ښارونو او قلاګانو څخه راوزي او له غرونو څخه به هم را ښکته شي او خپل حیوانات به هم را خلاص کړي په زمکه به د دوی د غوښو نه بغیر نور هېڅ نه وي (ګیاه ګانې او نور شنه شیان به ټول دوی خوړلي وي) رسول الله ﷺ فرمایل : زما د قسم وي په هغه ذات چې زما نفس د هغه په لاس کې دی چې د زمکې حیوانات به د دوی په غوښو او وینو سره چاغ شي په زمکه کې به هوا خرابه شي او بد بویي به شروع شي حضرت عیسی او ملګري به یې الله ته دعاء وکوي چې ددې بوی او بدې هوا لپاره څه حل را وباسي الله به ورته یو ډول مارغان را ولیږي چې غاړې به یې لکه د بُختي اوښانو داسې وي (یعني لوی لوی مارغان به وي) هغه به یې له زمکې نه پورته کړي او چېرته چې د الله خوښه وي هلته به یې وغورځوي په مهبل کې (د لمر خاته لور ته یو ځای دی) مسلمانان به د دوی په اسبابو چې له دوی سره وو د دوی ډالونو او نورو سامانو نو باندې اوه کاله اور بلوي او هغه به سوزوي بیا به الله یو ښکلی باران نازل کړي چې څلوېښت ورځې به دوام وکوي او زمکه به ټوله پاکه

وويـنځي لـکه شيشه (يـعني بـه دا زمـکه پـاکـه کـړي چې انـسان زمـکې تـه وګـوري مخ يـې پـکې ښکاره کـيـږي) او لـدې نـه وروسته بـه پـه دنـيـا کې يـو نـوی بـرکـت نـازل شي پـداسې تـوګـه چې يـوه ډلـه خلـک بـه پـه يـوه انـار بـانـدې را ټـولـيـږي او پـه ټـولـو بـه هغـه يـو انـار نـشي ختمـولـی لـه هـر لـوري بـه بـرکـتونـه مسلمانـانـو تـه ور مخه کـړي يـوه لـنګـه اوښه چې وي هغه بـه د ډيـرو خلـکو لـپاره بـس کېدونـکې وي يـوه لـنګه غـوا بـه د ډيـرو زيـاتـو خلـکو لـپاره بـس کـيـږي او يـوه مېږه بـه د ټـول کـور لـپاره بـس کـيـږي مـسلـمـانـان بـه پـه همدې نـعمتونـو کې وي چې يـو بـاد بـه پـرې را والـوزي د هـر مؤمـن او مـسلـمـان روح بـه ورسره واخـلـي او ټـول بـه وفـات شي دنـيـا بـه بـېـرتـه بـدو خـلـکو تـه پـاتـې شي هغـوی بـه پـکې بـېـرتـه فـسادونـه شروع کـړي او داسې حـال بـه راشي چې دا بـدان خـلـک بـه پـه زمـکه کې **يَتَهَارَجُون فيها تهارج الحمر** (داسې يـو پـه بـل خـيـږي لـکه خـره يـعـني د هـېڅ ډول شرم احساس بـه نـه کـوي او د خلـکو پـه وړانـدې بـه سړی پـه ښځه بـانـدې آختـه کـيـږي) او بـيـا بـه پـه همدوی بـانـدې قـيـامت راځي .

ابـن الـعـربـي وايـي پـه پـورتـني حديـث کې دری لـويـې فـايـدې دي :

۱ . الله پـه خپـل قـدرت سره دوی لـدې نـه بـې وسې کـړي دي چې دوی ددې بـنـد پـه ورانـولـو بـانـدې شپـه او ورځ روان کـار وکـوي او پـه يـوه ورځ کې يـې دوی ختمـولـی نـشي .

۲ . الله دوی تـه دا هـدايـت نـه دی کـړی چې دوی داسې زيـنـه جـوړه کـړي چې پـدې بـنـد بـانـدې را واوړي او ددې احتمال هـم شتـه چې د دوی پـه زمـکه کې د لـرګـي او داسې نـور آلات نـه وي چې دوی داسې څه شی تـرې جوړ کـړي چې لـدې نـه پـرې را واوړي لـکن امـام ابـن حجر دا خبـره رد کـړېـده او ويـلـي دي چې د دوی پـه زمـکه کې ونـې شتـه نـو

دا اولنی خبره غوره ده چې ﷲ ورته ددې هدایت نه دی کړی .

٣. ترڅو چې د دوی د راوتلو وخت نه وي راغلی ﷲ دوی لدې څخه بند کړي دي او دا یې د دوی په ذهن کې نه ده ور اچولې چې دوی ووایي **ان شاء الله** .

اوس دا چې **ان شاء الله** وایي نو ددې معنی داده چې په دوی کې هم داسې خلک شته چې ﷲ پېژني او د هغه په اراده باندې ایمان لري ځکه وایي **ان شاء الله** او ددې احتمال هم شته چې دا لفظ د د دوی د مشر په خوله باندې جاري شي بغیر لدې چې دی یې دې په معنی پوه شي خو ددې لفظ په برکت سره د دوی کار کیږي .[1]

حضرت ابو سعید الخدري فرمایي : رسول ﷲ ﷺ فرمایل : **يقول الله عز وجل يوم القيامة يا آدم قم فابعث بعث النار فيقول لبيك وسعديك والخير في يديك يا رب وما بعث النار قال من كل ألف تسع مائة وتسعة وتسعين قال فحينئذ يشيب المولود وتضع كل ذات حمل حملها وترى الناس سكارى وما هم بسكارى ولكن عذاب الله شديد قال فيقولون فأينا ذلك الواحد قال فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم تسع مائة وتسعة وتسعين من يأجوج ومأجوج ومنكم واحد قال فقال الناس الله أكبر فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم أفلا ترضون أن تكونوا ربع أهل الجنة والله إني لأرجو أن تكونوا ربع أهل الجنة والله إني لأرجو أن تكونوا ثلث أهل الجنة والله إني لأرجو أن تكونوا نصف أهل الجنة قال فكبر الناس قال فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم ما أنتم يومئذ في الناس إلا كالشعرة البيضاء في الثور الأسود أو كالشعرة السوداء في الثور الأبيض .**[2]

---

[1] فتح الباري
[2] رواه الامام احمد

ترجمة : الله به د قيامت په ورځ وايي اې آدمه پاڅه د دوزخ خلک را پاڅوه هغه به وايي زه ستا په اطاعت ولاړ يم نېکبختي تا لره ده خير تول ستا په لاس کې دی اې ربه د اور برخه کومه ده؟ الله به ورته ووايي له هرو زرو څخه ۹۹۹ دا هغه ورځ ده چې (عذاب او وېره يې دومره سخته ده چې) ماشوم به پکې بوډا شي او حامله به له وېرې خپل حمل ضائع کړي ته به چې خلکو ته ګورې داسې به درته ښکاره کيږي لکه دوی چې په نشه کې وي دوی به په نشه کې نه وي لکن د الله عذاب ډېر سخت دی دوی به وايي چې هغه يو په مونږ کې چېرته دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : ۹۹۹ له ياجوج او ماجوج او يو له تاسې صحابه وو چې دا خبره واورېده ويې ويل الله اکبر رسول الله ﷺ وويل : تاسې پدې نه ياست خوشحال چې تاسې د اهل الجنة څلورمه بره شئ و الله زما دا اميد دی چې تاسې څلورمه د جنت شئ و الله زما دا اميد دی چې تاسې د جنت دريمه برخه شئ و الله زما دا تمه ده چې تاسې د جنت نيمه برخه شئ راوي فرمايي بيا خلکو الله اکبر وويل بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : په هغه ورځ به تاسې په نورو خلکو کې داسې وئ لکه يو سپين وېښته په تور غوايي کې او يا لکه تور وېښته په سپين غوايي کې .

## د ياجوج او ماجوج صفات

د ياجوج او ماجوج ډېر عجيب صفات نقل شوي دي او د دوی د خلقت په اړه مختلف اقوال راغلي دي امام شوکاني پدې اړه فرمايي : **وقد وقع الخلاف في صفتهم فمن الناس من يصفهم بصغر الجثث وقصر القامة ومنهم من يصفهم بكبر الجثث وطول القامة ومنهم من يقول لهم مخالب كمخالب**

**السباع وإن منهم صنفاً يفترش إحدى أذنية ويلتحف بالأخرى ، ولأهل العلم من السلف ومن بعدهم أخبار مختلفة في صفاتهم وأفعالهم .** [1]

ترجمة : د ياجوج او ماجوج د اندازې او د خلقت په اړه د علماوو مختلف اقوال دي ځینې یې وایي چې واړه واړه قدونه یې وي او ځینې یې وایي چې لوړ لوړ وي او ځینې علماء وایي چې د دوی به داسې پنجې وي لکه د ځناورو چې وي او په دوې کې یوه ډله داسې ده چې یو غوږ به ځان ته د فرش په ځای اچوي او بل غوږ به یې په ځان د کمپل په ډول ور اچوي او د اهل العلم د سلفو او وروستنیو علماوو د دوی د صفاتو او افعالو په اړه مختل ډول اقوال دي .

امام ابن کثیر فرمایي : **وقد ذكر إبن جرير عن وهب بن منبه أثراً طويلاً عجيباً وفيه طول وغرابة ونكاره في أشكالهم وصفاتهم وطولهم وقصر بعضهم وآذانهم وروى أيضاً إبن أبي حاتم عن أبيه في ذلك أحاديث غريبة لاتصح أسانيدها والله أعلم**

ترجمة : ابن جریر له وهب بن منبه نه اوږد اثر نقل کړی دی په هغه کې اوږدوالی او غربت او نا اشنا والی دی د هغوی د اشکالو ، صفاتو ، اوږدوالي او لنډوالي په اړه پکې خبرې شوي دي او د هغوی د غوږونو په اړه او ابن ابي حاتم له خپل پلار نه پدې اړه احادیث هم روایت کړي دي چې سندونه یې صحیح نه دي **و الله اعلم** .

حضرت عبد الله بن عباس پدې اړه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **يأجوج ومأجوج شبر وشبران وأطولهم ثلاثة أشبار وهم من ولد آدم.** [2]

---

[1] فتح القدير
[2] اخرجه ابن المنذر

ترجمة : ياجوج او ماجوج يوه لوېشت وي او دوه لوېشتې وي او اوږد پکې درى لوېشتې وي او داد آدم له اولاد څخه دي .

امام ابن كثير فرمايي : **والصحيح أن يأجوج ومأجوج من بني آدم وعلى أشكالهم وصفاتهم وقد قال النبي صلى الله عليه وسلم إن الله خلق آدم وطوله ستون ذراعاً ثم لم يزل الخلق ينقص حتى الآن .** [1]

ترجمة : صحيح خبره داده چې ياجوج او ماجوج د بني آدمو څخه دي او د انسانانو په شکلونو کې دي او د همدې صفات لري او رسول الله ﷺ فرمايي بېشکه الله آدم پيدا کړو اوږدوالى يې ٦٠ گزه وو له هغې نه وروسته تر اوسه پورې مخلوق کميږي (قد يې وړوکى کيږي) .

حضرت سعيد بن مسيب له حضرت ابي هريره څخه روايت کوي هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **لا تقوم الساعة حتى تقاتلوا قوماً نعالهم الشعر ولا تقوم الساعة حتى تقاتلوا قوماً صغار الأعين ذلف الانف كأن وجوههم المجان المطرقة.**

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو تاسې د داسې يو قوم سره جنګ وکوئ چې د هغوى څپلى له ويښتو څخه جوړې وي (يعني څپلى يې له داسې څرمنې څخه وي چې صفايې يې نه وې شوې ويښته وربانديې ښکاره کيږي) او قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو تاسې د داسې قوم سره جنګ وکوئ چې وړې وړې سترګې يې وي پيتې پوزې يې وي مخونه يې لکه پوښ شوي ډالونه داسې وي (مخونه يې د هغه ډالونو سره مشابه کړل چې پوښ ور اچول شوى وي يعني د دوى مخونه به ګرد او له غوښو ډک وي) .

---

[1] البداية و النهاية

نو علماء وايي چې دا ياجوج او ماجوج دي او ددې لپاره نور احاديث هم شته چې دا ښکاره کوي چې دا خلک ياجوج او ماجوج دي حضرت خالد بن عبد الله بن حرملة په يو مرفوع حديث کې فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إنكم تقولون لا عدو وإنكم لاتزالون تقاتلون يأجوج ومأجوج عراض الوجوه صغار العيون صهب من كل حدب ينسلون كأن وجوههم المجان المطرقة.**

ترجمة : تاسې خو واياست دښمن نشته او تاسې به خامخا د ياجوج او ماجوج سره جنګ کوئ چې پلن مخونه به يې وي وړې سترګې به يې وي سره او سپين رنګونه به يې وي له هرې لوړې نه به رابهيېږي مخونه به يې لکه پوښ شوي ډالونه داسې وي (ګرد او له غوښو نه به ډک وي) .

پدې حديث کې وربانديې تصريح شوېده چې دا قوم ياجوج او ماجوج دي همدارنګه په بل روايت کې حضرت قيس بن ابي حازم له حضرت ابي هريره څخه روايت کړى دى هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **تقاتلون بين يدي الساعه قوماً نعالهم الشعر كأن وجوههم المجان المطرقة حمر الوجوه ، صغار الأعين .**

ترجمة : تر قيامت وړاندې به د داسې قوم سره جنګ کوئ چې پڼې يې د وېښتانو وي مخونه يې لکه پوښ شوي ډالونه داسې وي (ګرد او له غوښو ډک وي) سره مخونه به يې وي او وړې وړې سترګې به يې وي .

دې پورتنيو احاديثو په ښکاره سره د ياجوج او ماجوج څه صفات بيان کړل چې مخونه يې به يې پلن او ګرد وي لکه پوښ کړل شوي ډالونه (سپرونه) او دا چې دوى هم بني آدم دي او پڼې (پايزارونه) به يې د وېښتانو وي او داسې نور.

## د ياجوج او ماجوج شمېره

دا چې ياجوج او ماجوج څومره نفوس لري؟ دا څومره دي پدې اړه ښکاره ده چې دوی ډېر زيات دي تردې لکه چې په مخکې احاديثو کې تېر شول چې اوله برخه يې په بحر ورشي هغه به په څښلو ختم او وچ کړي او وروسته چې پسې ورځي هغوی به وايي دلته په يو وخت کې اوبه وې حضرت عمران بن حصين فرمايي : **والذي نفسي بيده إنكم لمع خليقتين ماكانتا مع شئ قط إلا كثرتاه يعني يأجوج ومأجوج.**

ترجمة : زما د په هغه ذات قسم وي چې زما نفس د هغه په لاس کې دی تاسې له دوو مخلوقانو سره ياست چې هېڅ داسی شی نشته چې دوی ورسره مقايسه کړل شي دوی به پرې زيات وي يعني ياجوج ماجوج .

امام ابن کثير ددې حديث سره فرمايي : **يعني ماكانتا مع شئ إلا غلبتاه كثرة وهذا يدل على كثرتهم وأنهم أضعاف الناس مراراً عديدة ، فهم أمم وخلق لاعلم عددهم إلا الذي خلقهم.** [1]

ترجمة : معنی يې داده چې له هرشي سره مقايسه کړل شي وربانديې زياتيږي دا ددې نښه ده چې دوی به زيات وي او دوی به د خلکو څو چنده وي په هغوی کې امتونه دي او مخلوق دی چې عدد يې يوازې هغه چاته معلوم دی چې پيدا کړي يې دي .

حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص فرمايي : **إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ جَزَّأَ الْخَلْقَ عَشَرَةَ أَجْزَاءٍ ، فَجَعَلَ الْمَلائِكَةَ تِسْعَةَ أَجْزَاءٍ ، وَجَزَّأَ سَائِرَ الْخَلْقِ ، وَجَزَّأَ الْمَلائِكَةَ عَشَرَةَ أَجْزَاءٍ ، تِسْعَةُ أَجْزَاءٍ يُسَبِّحُونَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ لا يَفْتُرُونَ ، وَجُزْءٌ لِرِسَالَتِهِ وَأَمْرِهِ ، وَجَزَّأَ الْجِنَّ وَالإِنْسَ عَشَرَةَ أَجْزَاءٍ ، فَجَعَلَ تِسْعَةَ أَجْزَاءٍ الْجِنَّ وَجُزْءًا الإِنْسَ ، وَلا يُولَدُ لِلإِنْسِ مِنْ**

---

[1] البداية والنهاية

مَوْلُودٍ إِلا وُلِدَ لِلْجِنِّ تِسْعَةُ أَمْثَالِهِ ، وَجَزَّأَ الإِنْسَ عَشَرَةَ أَجْزَاءٍ ، فَجَعَلَ تِسْعَةَ أَجْزَاءٍ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ ، وَجُزْءًا سَائِرَ الإِنْسِ.

ترجمة : الله ټول مخلوق په لسو برخو تقسیم کړو نه برخي ملائک کړل او یوه برخه یې ټول پاتې مخلوق کړو ملائک یې لس برخې کړل نه برخې یې هغه کړې چې د شپې او ورځې د الله تسبیح وایي سستیا پکې نه کوي او یوه برخه یې د رسالت او نورو امرونو لپاره پرېښودې انسانان او پېریان یې په لسو برخو تقسیم کړل نه برخې یې پېریان کړل او یوه برخه یې انسانان کړل په انسانانو کې چې یو ماشوم پیدا کیږي ددوی په بدل کې په پېریانو کې نه ماشومان پیدا کیږي بیا یې انسانان په لسو برخو تقسیم کړل نه برخې یې یاجوج او ماجوج کړل او یوه برخه یې پاتې انسانان کړل .

او ددې امله چې د دوی نفوس له انسانانو څخه په څو چنده زیات دی او ددې امله خو په زمکه باندې زیاته برخه دوی نیولې ده حضرت عبد الله بن عباس فرمایي **الأرض ستة أجزاء فخمسة أجزاء فيها يأجوج ومأجوج وجزء فيه سائر الخلق.**

ترجمة : زمکه په شپږو برخو تقسیم شوېده په پنځو برخو کې یاجوج او ماجوج اوسیږي او په یوه برخه کې یې پاتې ټول مخلوق .

حضرت حذیفه بن الیمان فرمایي ما رسول الله ﷺ ته وویل : دا یاجوج او ماجوج څه شی دي؟ ده ﷺ راته وویل : **يأجوج أمه ومأجوج أمه ، كل أمة أربعمائة ألف أمة ، لايموت الرجل منهم حتى ينظر إلى ألف عين تطرف ما بين يديه من صلبه.**

ترجمة : یاجوج یو امت دی او ماجوج بل امت دی هر یو یې څلور لکه امت دی خو په هغوی کې یو

نارینه تر هغه وخته پورې نه مړ کیږي ترڅو له خپل نسل څخه زر کسان ونه ویني چې دده په مخ کې ګرځي .

حافظ ابن حجر په فتح الباري کې فرمایي دا حدیث ضعیف دی لکن دده څه برخه په بل ځای کې د حضرت عبد الله بن مسعود په حدیث کې راغلې ده هغه فرمایي : **إن يأجوج ومأجوج أقل ما يترك أحدهم لصلبه ألفاً من الذرية** (بېشکه په یاجوج ماجوج کې ډیر کم داسې وي چې د هغه له نسل څخه زر کسان نه پاتې کیږي) .

حضرت عمرو بن اوس له خپل پلار نه روایت کوي او فرمایي **إن يأجوج ومأجوج يجامعون ماشاءوا ولا يموت رجل منهم إلا ترك من ذريته ألفاً فصاعداً .**

ترجمة : بېشکه یاجوج او ماجوج دومره جماع کوي چې څومره یې خوښه وي او په دوی کې یو نارینه تر هغه وخته نه مړ کیږي ترڅو زر او یا تر هغې زیات نسل پرې نه ږدي .

## د ذی القرنین د بند څرنګوالی

دا بند څنګه جوړ دی؟ څنګه ښکاره کیږي ؟ ددې سوالونو په ځوابونو پسې وګرځېدم او یوڅه معلومات مې د ځان او خپل لوستونکي لپاره را پیدا کړل په بخاري شریف کې یو روایت راغلی دی چې یو کس رسول الله ﷺ ته وویل : **رأيت السد مثل البرد المحبر قال : قد رأيته** (ترجمة : ما بند ولیدو لکه یخ داسې وو چې رنګ ورکړل شوی وي رسول الله ﷺ ورته وویل : بس تا لیدلی دی) حافظ ابن حجر په فتح الباري کې لیکلي دي دا حدیث ابن ابي عمر ته د سعید بن ابي عروبة له لارې له قتادة څخه د یو سړي له خوا ور ورسېدو چې د مدینې

منورې وو چې هغه سړي رسول اللهﷺ ته وويل : يا رسول الله ﷺ ما د ياجوج او ماجوج بند وليدو رسول اللهﷺ ورته وويل څنګه د وليدو؟ يعني څنګه وو؟ هغه کس ورته وويل : لکه د يخ چې رنګ ورکول شوی وي يوه ليکه پکې سره وه او يوه ليکه پکې توره وه او دا روايت په نورو لارو هم نقل شوی دی .

امام ابن کثير فرمايي کله چې د خليفه أبو جعفر هارون الواثق بالله خلافت وو يو څه خپل مشران او اميران يې را ټول کړل او يو لښکر يې هم ورسره کړو او په لاره کې واقع بادشاهانو ته يې ليکونه هم ورکړل چې دوی ستاسې په خاوره تيريږي مرسته ورسره وکوئ تر څو دوی د ذی القرنين بند ته ورسيږي او له هغه ځای نه خبر راوړي او د خپلو سترګو ليدلی حال ووايي دا ډله له يو ښار نه بل ته او له يوه ملک نه بل ته رسېده تردې چې دا بند يې پيدا کړو او ويې ليدل چې له وسپنې څخه جوړ شوی قوي دېوال وو او مس وربانديې تويې کړل شوي وو او دا يې هم وويل چې مونږ پکې يوه دروازه هم وليده چې لوی لوی قلفونه ورته پراته وو او هلته يو برج وو په هغه کې مو هغه پاتې خښتې او سامان هم وليدل چې لدې تعمير نه پاتې شوي وو او په خوا کې ورسره د هغه ځای د حکومت د فوج لخوا ساتونکي دېره وو او داسې عجيب جوړ شوی دېوال وو چې دومره لوړ وو چې په هېڅ ډول څوک پرې ور ختلی نشوای او نه يې د ماتېدلو امکان وو او نه ورسره په خواکې داسې غر وو چې څوک د وربانديې وختلی شي بېرته راغلل خليفه ته يې دا ټول احوال راوړل او پدې سفر باندې د دوی د دوو کلونو څخه زيات وخت تېر شو .

## ياجوج او ماجوج چېرته دي؟

پدې اړه د علماوو ، مفسرینو ، لیکوالانو ، بحث کونکو رایې د تاریخ په هره برخه کې مختلفې پاتې شوې دي چې دا د یاجوج او ماجوج اوس چیرته دي او هغه بند چې په دوی پسې ذو القرنین جوړ کړی وو چیرته دی؟

ځینې د علم تاریخ علماء دې خبرې ته ترجیح ورکوي چې یاجوج او ماجوج د خط عرضي ۹۰ د شمال سره اوسیدل او هغه دواړه غرونه چې ذکر یې په قرآن کریم کې راغلی دی په ارمینیا او اذربیجان کې موجود دي او دا د ذو القرنین بند چې یادیږي په اوس وخت کې ورته د باب الابواب بند ویل کیږي لکن دا خبره لږ د حقیقت نه ددې امله لرې ښکاره کیږي چې دا بند له کانې څخه جوړ دی او هغه صفات چې په کتابونو کې د ذو القرنین د بند په اړه راغلي دي لکه لږ مخکې چې تیر شول هغه پدې نه صادقیږي او بل دا باب الابواب بند خو مشهور دی او دا کسری انوشروان نومي بادشاه جوړ کړی دی .

ځینې علماء وایي چې دا بند هغه د چین لوی بند دیوال دی چې د چین او منګولیا په مینځ کې واقع دی علماء وایي دا خو مشهور دېوال دی او هرچا لیدلی دی دا رایه خو د حقیقت نه ډېره لرې ده .

یوه بله ډله علماء وایي چې د یاجوج ماجوج بند ته اوس د وسپنزې دروازې بند ویل کیږي د ترمذ ښار سره نیږدې دی او هغه هم د وسپنې او ویلې شویو مِسو څخه جوړ دی.

ځینې علماء بیا وایي چې دیاجوج او ماجوج بند ته اوس مضیق داریال وایي په ارمنیا کې دی خو دا بند هم یوازې د وسپنې څخه جوړ دی .

ابو الکلام ازاد فرمایي د یاجوج ماجوج بند د قفقاز په غرونو کې واقع دی چې د بحر الخرز نه

تر بحر اسود پورې غزېدلي دي او د تفليس او ولادي کيوکز ملکونو په مينځ کې واقع دي او د دوو غرونو په مينځ کې واقع دی او د وسپنې څخه جو دی .

او ددې بند په اړه يو تاريخ پوه يوسيفوس هم خبرې کړي دي کله چې هغه د قوقاز شمال ته په سفر تللی وو او دا هغه نه دی چې کوم مخکې تېر شو چې باب الابو اب يې ورته ويل کوم چې د بحر الخزر په ساحل کې واقع دی ځکه تاريخ دهغې جوړښت لکه مخکې چې تېر شول يو بل بادشاه کسرى انوشروان ته کړی دی او دا يوسفوس تاريخ پوه دا ډېر وختي تېر شوی دی په هغه وخت کې په باب الابواب کې د وسپنې کار نه وو شوی .

خو دا ابو الکلام ازاد چې کوم ياد کړی دی په هغه کې هم مس نه دي استعمال شوي صرف د وسپنې څخه جوړ دی نو ځکه دا هغه نشي کېدلی .

ډېره عجيبه داده او وجه به يې الله ته معلومه وي چې تر اوسه پورې چې څومره د تحقيق خوښونکي خلک تېر شوي دي او په ټوله دنيا کې داسې خلک تېر شوي دي چې په يوه څېړنه باندې مليياردونه مصارف کولی شي او پدې اړه په زرګونو کتابونه ليکل شوي دي خو دوی پدې ونه توانېدل چې دا بند پيدا کړي او وروسته نسل ته په غوڅه طريقه سره ووايي چې دا چېرته دی .

خو ځنيې داسې دلا ئل له احاديثو څخه شته چې د هغې نه ښکاره کيږي چې هغه بند چې ذو القرنين د ياجوج او ماجوج د خوندي کولو او بندولو لپاره جوړ کړی دی چې په زرګونو کاله وړاندې جوړ شوی دی دا د روسيې د شمال په آخري برخه کې دی هغه دليلونه د مثال په ډول :

حضرت عبد الله بن عمر له رسول الله ﷺ نه په روايت سره فرمايي چې هغه مبارک ﷺ فرمايل : **إن يأجوج ومأجوج من ولد آدم ، ولو أرسلوا لأفسدوا على الناس معايشهم ، ولا يموت رجل منهم إلا ترك من ذريته ألفاً فصاعداً ، وإن من ورائهم ثلاث أمم : تاويل، وتاريس، ومنسك .**[1]

ترجمة : بېشکه ياجوج او ماجوج د حضرت آدم له اولاد څخه دي که دوى را پرېښودل شي نو په خلکو به دا ژوند خراب کړي او د هغوى نه چې يو کس مړ کيږي نو تر زرو او يا زياتو نسل پريږدي او په هغوى پسې شا ته بيا درى امتونه دي تاويل ، تاريس او منسک .

حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص فرمايي : **أن يأجوج ومأجوج من ذرية أدم ، وإن من وراءهم ثلاث أمم : تأويل ، وتأريس ، ومنسك ، ولن يموت منهم رجل إلا ترك من ذريته ألفاً فصاعدا .**[2]

ترجمة : بېشکه ياجوج او ماجوج د آدم له اولادې څخه دي او په دوى پسې شا ته درى امتونه دي تأويل ، تأريس اومنسك او په دوى کې يو کس تر هغه وخته پورې نه مړ کيږي ترڅوپه ځان پسې زر کسان او يا زيات نسل پرې نه ږدي .

په پورتني حديث کې چې درى ځايونه ذکر شوي دي تأويل ، وتأريس ، ومنسك هغه درى واړه په روسيه کې ځايونه دي په متعددو رواياتو کې يې ذکر راغلى دى خو زه يې د بحث د لنډولو په موخه نه را نقل کوم او دا ځايونه درى واړه موجود دي :

---

[1] **الدر المنثور في التفسير بالمأثور للامام جلال الدين السيوطي**
[2] **الإشاعة لاشراط الساعة للشريف محمد البرزنجي الحسيني**

تـأويـل : اوس د بـالـسک او یـا تـوبـولـسک ښار بـولـي پـه روسيـه کـې د سيـبـيـريـا مـرکـز دی .

تـأريـس : دېـتـه اوس تـيـراس ويـل کـيږي پـه روسيـه کـې مـشهـور ښار دی .

مـنسک : دا د مـيـنـسک ښار دی پـه روسيـه کـې د بـيـاروسيـا مـرکـز دی او يـا د روسيـا الـبـيـضاء مـرکـز دی او د ټـولـو ښارونـو څخه يـې دا لـوی او ښکـلـی ښار دی او مـخکـې د اتـحـاد شوروي يـو جـمـهـوريـت وو نـو دا دری واړه ښارونـه پـه روسيـه کـې مـوجـود دي .

پـه يـو بـل روايـت کـې يـو بـل دلـيـل هم پـدې شتـه چـې دا د روسيـې پـه طرف کـې دي د دجلـې د نـهـر ذکـر راغلـی دی حضرت عبـد الله بـن عمـر فـرمـايـي **إن يأجوج ومأجوج يمر أولهم بنهر مثل دجلة ، ويمر آخرهم فيقول : قد كان في هذا النهر مرة ماء ولا يموت رجل منهم إلا وترك من ذريته ألفاً فصاعداً ، ومن بعدهم ثلاث أمم لا يعلم عدتهم إلا الله : تاويل ، وتاريس ، وناسك أو منسك** . [1]

تـرجـمـة : بـېشکـه يـاجـوج مـاجـوج چـې د دجلـې پـه نـهـر بـانـدې تـيـرشي آخر بـه يـې پـرې تـيـريـږي وايـي بـه يـو وخت دلـتـه اوبـه وې او پـه دوی کـې يـو کس تـر هغه وختـه نـه مـړ کـيږي تـرڅو د خپـل نـسل نـه زر او تـر زرو زيـات نـسل پـرې نـه ږدي او د دوی شاتـه دری نـور امـتـونـه دي چـې عدد يـې بـغيـر د الله نـه بـل چا تـه نـه دی مـعلـوم تـاويـل ، وتـاريـس ، ونـاسك .

امـام زکـريـا بـن مـحـمـد الـقـزويـنـي فـرمـايـي : مـنسك : **هم في جهة الشرق بقرب يأجوج ومأجوج . عجائب المخلوقات وغرائب الموجودات**

[1] **يـوسف الـمـقـدسي الـشافـعي الـسلـمي**

ترجمه : منسک هغوی د شرق لوري ته دي د یاجوج او ماجوج سره نښږدي .

نو ددې احادیثو او اثارو په رڼا کې یو انسان ویلی شي چې د یاجوج او ماجوج بند په اوسني جغرافیایي حساب کې د روسیې د د دریو ښارونو په شا کې واقع دی.

خو بیا هم که څومره لټون پسې وکوو او څومره زه د نورو علماوو او مورخینو او د جغرافیې د علماوو نظریات ستاسې په وړاندې کیږدم چې ما تقریبا د یوه کتا ب په شکل کې را ټول کړي آخري نتیجه به یې همدا راوزي چې ما درته وختي وویل چې حکمت یې له الله سره دی چې ولې هېڅا تر اوسه ددوی دقیق ځای ندی معلوم کړی و الله اعلم .

# څېړونکي یاجوج او ماجوج ولي نشي پیدا کولی ؟

هغه کسان چې له دیني معلوماتو یې برخه کمه وي او په پورته توګه په دیني امورو نه وي خبر هغوی یوه پوښتنه کوي چې نن سبا د ترقي او ټیکنالوجي دور دی په دنیا کې چې څومره ځایونه دي څېړونکو معلوم کړي او کشف کړي دي نو دا ځای ولې نشي کشف کولی؟ علماء ددې پوښتنې ځواب داسې کوي :

د زمکې د ټولو برخو پېژندل او د هغه په اسرارو خبرېدل او په هغه کې د مخلوقاتو معلومول دا یوازې د هغه الله صفات دی چې په هرشي باندې مکمل عالم دی او دا چې څیړونکي اوس کوم شی نشي پیدا کولی لکه د یاجوج او ماجوج ځای یا د دجال هستوګنځی نو ددې معنی دا نه ده چې دا موجود نه دي دا موجود دي زمونږ وربانډې ایمان دی لکن الله د خلکو له نظر نه پټ

کړي دي او الله د خلکو او ددې ځايونو په مېنځ کې داسې پردي پيدا کړي دي چې انسانان هغه نشي ليدلی لکه يو وخت چې الله همداسې د بني اسرائيلو سره وکول چې په دښت تيه کې چې وړوکې دښته وه پدې کې يې ورک کړل څلوېښت کاله په هغه دښته کې ګرځېدل پدې څلوېښتو کلونو کې نه نورو خلکو وليدل سره ددې چې په هغه دښته باندې د خلکو د تلو را تلو لارې وې او نه په څلوېښتو کلونو کې دوی وکولی شوای چې لدې دښتې څخه بهر شي تردې چې د الله اجازه ورته وشوه نو پخپله په اساني سره له هغه دښتې نه ووتل الله په هرشي باندې قادر دی او د هرشي لپاره يې يو وخت ټاکلی دی الله فرمايي : **وَكَذَّبَ بِهِ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ قُلْ لَسْتُ عَلَيْكُمْ بِوَكِيلٍ** (٦٦) **لِكُلِّ نَبَإٍ مُسْتَقَرٌّ وَسَوْفَ تَعْلَمُونَ** (٦٧) . [1]

ترجمة : ستا قوم قرآن کريم ته دروغ وويل او د هغه تکذيب يې وکولو حال دا چې هغه حق دی ته ورته ووايه زه په تاسې باندې وکيل نه يم د هرخبر لپاره خپل وخت وي او زر ده چې تاسې به پوه شئ .

په همدې ډول دا اوس چې کوم انکشافات کيږي ددې معنی دا نه ده چې د پخوانيو خلکو ذهنونو کار نه کولو او يا اوسني خلک په ذهن او کار کې تر پخوانيو ډېر تکړه دي بلکه الله د هرشي د را ښکاره کېدلو او کشف کېدلو لپاره خپل وخت ټاکلی دی تر هغه وړاندې يې څوک نشي را کشف کولی .

قاضي عياض پدې اړه فرمايي : **الأحاديث الواردة في يأجوج ومأجوج : هذه الأخبار على حقيقتها يجب الإيمان بها ؛لأن خروج يأجوج ومأجوج من علامات الساعة، وقد ورد خبرهم أنه لا يقدر لأحد على قتالهم من كثرتهم ،وأنهم يحصرون نبي الله عليسى عليه السلام ومن**

---
[1] سورة الانعام

مهع من المؤمنين الذين نجوا من الدجال ،فيدعو عليهم فيهلكهم الله عز وجل أجمعين بالنغف- وهو الدود في رقابهم- فيؤذون الأرض والمؤمنين بنتنهم ،فيدعو عيسى وأصحابه ربهم فيرسل الله طيرا فتحملهم حيث شاء الله .[1]

ترجمة : هغه احاديث چې د ياجوج ماجوج په اړه راغلي دي ددې په حقيقت باندې ايمان راوړل واجب دي ځکه د ياجوج ماجوج راوتل د قيامت له نښو څخه دي او ددې خبر راغلى دى چې هېڅوک له هغوى سره په جنګ کولو قادر نه دي ځکه هغوى ډېر زيات دي او دا هم راغلي دي چې دوى به نبى الله حضرت عيسى له خپلو ملګرو سره په غره کې محاصره کوي هغه چې د دجال نه محفوظ پاتې شوي وي بيا به هغوى ورته ښېرا وکوي او ټول به د يو چينجي په واسطه باندې هلاک شي چې د دوى په غاړو کې به پيدا شي بيا به زمکه او مؤمنان د دوى د مردارو له بوى نه تنګ شي بيا به حضرت عيسى او د هغه ملګر له رب نه وغواړي نو په هغوى باندې به مارغان مسلط شي او هغه ځاى ته به يې يوسي چېرته چې د الله خوښه وي .

## ياجوج او ماجوج له راوتلو وروسته

لکه مخکې چې بيا بيا تېر شول چې ياجوج ماجوج اوس هم پدې لګيا دي چې هغه بند له خپلې مخې لرې کړي کوم چې ذى القرنين ورته جوړ کړى دى خو ترڅو چې د الله اراده نه وي شوې دوى دا کار نشي کولى خو کله چې د الله اراده ورته وشي مخکې يې قصه تېره شوه دوى به دا بند ختم کړي او لکه د بحر د موجونو په شکل به دنيا ته را بهر شي او لکه اوبه داسې به روان وي مرګونه به کوي خرابي به راولي په زمکه باندې چې څه غوره شى پيدا کوي هغه به خوري او له مخې سره چې په

[1] نقله عنه القاري في مرقاة المصابيح شرح مشكاه المصابيح

دریاب باندې ورځي هغه به په څښلو کې ختموي مخکې یو حدیث تېر شو چې رسول الله ﷺ فرمایل پدې وخت کې به الله حضرت عیسی ته خبر ورکړي چې زما بندګان له ځان سره ملګري کړه الطور ته پناه یوسه ما داسې بندګان را وویستل چې هېڅوک له هغوی سره جنګ نشي کولی او الله به یاجوج ماجوج را وباسي دوی به له هر لوړ ځای نه را ښکته کېدونکي اول یې چې په بحیرة الطبریة باندې ورشي څه چې پکې وي هغه به وڅښي وروستي یې چې راشي هغوی به وایي دلته په یو وخت کې اوبه وې .

## د یاجوج او ماجوج آخره

د یاجوج او ماجوج آخره څو ځله مخکې هم تېره شوه چې حضرت عیسی چې پدې وخت کې د یاجوج او ماجوج نه د محفوظ کېدلو لپاره به په غره کې وي او د مسلمانانو ډله به هلته ورسره وي دوی به په غره کې پتنګ شي نو له الله نه به وغواړي چې لدې شر نه یې خلاص کړي الله به په یاجوج او ماجوج باندې یو چینجی مقرر کړي چې د هغوی په غاړو کې به پیدا شي او ټول به لکه د یو انسان مرګ داسې ختم کړي یو څه وخت به تېر شي چې مسلمانانو ته د دوی څه اواز نه ورځي نو په مسلمانانو کې به اواز وشي چې داسې څوک شته چې قرباني ورکړي او وګوري چې هغوی په څه حال کې دي دا کس چې را ښکته شي پدې وېره کې به وي چې اوس به یې یاجوج او ماجوج ووینې او قتل به یې کړي چې وګوري هغوی به ټول یو له بل د پاسه پراته او مړه وي نو مسلمانانو ته به په خوشحالۍ کې ور چغه کړي چې راځئ هغوی ټول مړه دي خو مسلمانان به د هغوی له مردارو څخه د بوی نه په تنګ شي نو له الله نه به وغواړي چې دا لرې کړي الله به یو ډول مارغان ورته مقرر

کړي چې لکه د بختي اوښانو داسې غاړې به يې وي هغوی به يې له زمکې نه پورته کړي چېرته چې د الله خوښه وي هغه ځای ته به يې يوسي او د دوی نه چې کوم سامان و غيره پاتې شي هغه به مسلمانان را ټول کړي او د ټولو مسلمانانو لپاره به د سوزولو د اوو کلونو لپاره بس کيږي په زمکه کې به اوس هم بوی او بده هوا خپره شوې وي الله به يو باران نازل کړي چې تر ځلوېښتو شپو پورې به وي او هغه به ټوله زمکه ووينځي او زمکه به له سره په ښو حاصلاتو باندې شروع وکوي او يو د خوشحالی او برکت نه ډک ژوند به شروع شي چې تر دې وخت نه وړاندې يې کله چا ساری نه وو ليدلی پدې وخت کې به الله يو باد را والوزوي چې څومره د خير او نيکي خلک دي او مؤمنان دي د هغوی نفسونه به پرې واخلي زمکه به بېرته بدو خلکو ته پاتې شي هغه بد خلک به پدې زمکه کې بېرته ګناهونه شروع کړي او د سرکونو په غاړو به فاحشې کوي او په همدې بدو خلکو به بيا الله قيامت راولي .

# علمي خبرې

د ياجوج او ماجوج په بحث کې چې ما ډېر کوښښ وکولو چې را لنډ يې کړم او تر خپلې وسې پورې مې را لنډ کړو څو علمي او اعجازې خبرې دي :

يوه رښتوني واقعه ده چې زرګونه کاله مخکې ذو القرنين يو بند جوړ کړی وو او الله تر پېنه رسول الله ﷺ خبر کړو .

ياجوج او ماجوج به په زرګونو کلونه په هغه بند کار کوي خو نه يې شي سوری کولی او چې کله د الله اراده وشي نو په اسانه به يې سور کړي .

ياجوج او ماجوج به داسې قومونه وي چې په بحر باندې راشي د دوی د لښکر د سر خلک به دومره وي چې د يوه بحر اوبه په څښلو باندې ختمولی شي .

ياجوج او ماجوج چې کله اسمان ته خپل غيشي ولي هغه به الله دوی ته په وينو رنګ را شکته کوي چې دوی نور هم په فتنه کې واقع شي .

هغه چې په ميليونونو فوج وي الله به يې د يو وړوکي چينجي په واسطه داسې مړه کړي لکه يو نفس چې مړ کيږي .

الله به د هغوی د جسدونو د لرې کولو لپاره مارغان را نازل کړي چې لکه د اوښانو داسې غاړې به يې وي او دا جسدونه به هغه ځای ته وړي چې چېرته د الله خوښه وي .

# د یاجوج او ماجوج اثار

په زمکه کې به یاجوج تر خپل مرګ وړاندې څه اثار پرېږدي چې تفصیل یې پورته تېر شو اجمالي اثار به یې دا وي :

یاجوج ماجوج به تر خپل مرګ پورې په ټوله دنیا باندې خپاره شي .

په زمکه کې به تر خپلې وسې پورې فساد وکوي څه چې ښه شی وي هغه به په خوراک ختم کړي پاکې اوبه  به په څښلو ختمې کړي په زمکه کې چې څومره ژوندي شیان په مخه ورځي هغه به هلاکوي .

مسلمانان به د حضرت عیسی  په مشرۍ کې په غره کې محاصره کړي .

کله چې دوی مړه شي د دوی د جسدونو څخه به زمکه داسې بد بویه شي چې ژوند به پکې نه کیږي .

ﷲ  به زمکه د مارغانو په واسطه باندې پاکه کړي بیا به وربانديې باران وکوي او د زمکې برکات به بېرته را پورته کړي پداسې اندازه چې مخکې چا نه وو لیدلي .

د یاجوج او ماجوج نه به مسلمانانو ته دومره اسباب پاتې شي چې دوی به وربانديې اوه کاله اور بلوي او هغه به نه ختمیږي .

د یاجوج او ماجوج راتلل ددې نښه ده چې قیامت را نیږدې شوی دی .

په هغه وخت کې چې کوم مؤمنان وي د هغوی په زړونو کې به ایمان نور هم محکم شي چې په زرګونو کاله وړاندې ﷲ  کومه خبره کړې وه دوی په سترګو ولیدل چې هغه رښتیا شوه .

په هغه وخت کې پاتې شوي مؤمنان به پدې پوه شي چې اوس قيامت ډېر را نېږدی دی له دنيا به مخ واړوي او آخرت لوري ته به مخ کړي .

## لمر له لمر لوېده څخه را پورته کېدل

د قيامت بله لويه نښه داده چې لمر به له مغرب يعني لمر لوېده څخه را پورته شي دا نښه چې په اړه يې آياتونه او احاديث راغلي دي دا به د حضرت عيسی نه وروسته را ښکاره کيږي د حضرت عيسی وخت به داسې د امن وخت وي چې په ټوله دنيا کې به د يو الله عبادت کيږي او ټولې نورې عقيدې به ختمې شي او په زمکه به د الله نه بغير د بل چا عبادت نه کيږي او صرف په انسانانو کې نه بلکه په حيواناتو کې به هم يو ډول امن خپور شي لېوه به د مېږو سره او زمری به له غوايانو سره په شريکه خوراک کوي او هېڅ به هم ورته نه وايي خلک به په زړونو کې مالدار او مستغني شي هېڅوک به مال ته ضرورت نه محسوس کوي بيا به يو باد را پورته شي نو د نيکانو روحونه به واخلي پدې وخت کې به د رواياتو له مخې حضرت عيسی د رسول الله ﷺ د قبر مبارک سره وي او همغلته به دفن شي په روضه مبارکه کې به د حضرت ابي بکر او عمر سره د فن کړل شي بيا به په خلکو وخت تېر شي او دا وخت به له خلکو څخه ورو ورو هېر شي او نېکان خلک به وفات شي په دنيا به يو ځل بيا د خرابو خلکو حکومت او واکمني شي يو دم به لمر د مغرب لخوا را پورته شي الله فرمايي :: **يَوْمَ يَأْتِي**

بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لاَ يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا قُلِ انتَظِرُواْ إِنَّا مُنتَظِرُونَ . [1]

ترجمة : په هغه ورځ چې ځيني نښې د قدرت د رب ستا را ښکاره شي نو نفس ته به د هغه ايمان فايده نه کوي چې مخکې يې ايمان نه وي راوړی او يا يې په ايمان کې نېکي نه وي کړې ته ورته ووايه انتظار وباسئ مونږ انتظار وباسو.

د صحيحو احاديثو څخه ښکاره کيږي چې پدې آيت کې د **بَعْضُ آيَاتِ** نه مراد لمر له مغرب څخه راختل دي او ددې آية په تفسير کې امام طبري فرمايي : **وأولى الأقوال بالصواب في ذلك ما تظاهرت به الأخبار عن رسول الله صلى الله عليه وسلم أنه قال: ذلك حين تطلع الشمس من مغربها.** [2]

ترجمة : په قولونو کې غوره قول هغه چې د رسول الله ﷺ احاديث هم وربانديې گواه دي هغه دا دی چې دا هغه وخت دی چې کله لمر له مغرب څخه را پورته شي .

## پدې اړه احاديث

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **لا تقوم الساعة حتى تطلع الشمس من مغربها فإذا رآها الناس آمن من عليها فذاك حين لا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا .** [3]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو لمر له لويده څخه را پورته نشي کله يې چې

---

[1] سورة الانعام آية ١٥٨
[2] تفسير الطبري
[3] رواه البخاري

ووينې په هغه وخت کې به ټول خلک ايمان وربانډې راوړي او هغه به هغه وخت وي چې الله يې په اړه ويلي دي چې فايده به نه کوي يو نفس ته د هغه ايمان چې له مخکې څخه يې ايمان نه وي راوړی او يا يې په ايمان کې نېک کارونه کړي نه وي .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :
**ثلاث إذا خرجن لا ينفع نفسا إيمانها لم تكن آمنت من قبل أو كسبت في إيمانها خيرا طلوع الشمس من مغربها والدجال ودابة الأرض .** [1]

ترجمة : دری شيان دي چې کله را بهر شي بيا به نفس ته د هغه ايمان فايده نه کوي چې له مخکې نه يې ايمان نه وي راوړی او يا يې په خپل ايمان کې نېک کارونه کړې نه وي لمر چې له لمر لوېده څخه را وخيږي ، دجال را ښکاره شي ، او دا بة الارض را بهر شي .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :
**بادروا بالأعمال ستاً: طلوع الشمس من مغربها .**

ترجمة : له شپږو شيانو څخه خپل نېک عملونه وړاندې وکوئ په هغه شپږو شيانو کې يې يو دا ياد کړو چې لمر له مغرب نه را پورته شي .

رسول الله ﷺ فرمايي : **إن الله يبسط يده بالليل ليتوب مسيء النهار . ويبسط يده بالنهار ليتوب مسيء الليل حتى تطلع الشمس من مغربها.** [2]

ترجمة : الله د شپې خپل لاس اوږدوي ترڅو د ورځې ګناه کونکی توبه وباسي او د ورځې خپل لاس

---

[1] اخرجه مسلم
[2] رواه مسلم

اوړدوي ترڅو د شپې ګناه کونکی توبه وباسې تردې چې لمر له لمر لوېده څخه را پورته شي .

پدې اړه روايتونه ډېر دي چې علماوو شمېرلي هغوی وايي چې په صحيح بخاري او مسلم کې پدې اړه مختلف روايتونه ۱۸ ځايه راغلي دي چې حد د تواتر ته رسېدلي دي او زه دلته په همدې اکتفاء کوم .

## د توبې دروازه بندېدل

کله چې لمر د مغرب له لوري څخه را پورته شي نو د توبې دروازه به وتړله شي تر هغې وړاندې چې چا توبه ويستلې نه وي اوس به توبه ورته هېڅ فايده نه کوي له هغې وړاندې چې څوک د ايمان په نعمت مشرف شوي نه وي اوس به ورته هېڅ فايده نه کوي ځکه له لمر لوېده نه د لمر را پورته کېدل يوه داسې لويه نښه ده چې هرڅوک به يې ويني او هر چا ته به حقيقتونه ښکاره شي او په هرچا باندې به يو ډول مصيبت راشي چې هېڅوک به يې په حل نه پوهيږي نو هرڅوک به په الله باندې د ايمان لوري ته خپله غاړه ور اوږده کړي او اوس به د الله هغه فيصله وشي چې مخکې الله فرمايل دي : **فَلَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا قَالُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَحْدَهُ وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهِ مُشْرِكِينَ فَلَمْ يَكُ يَنفَعُهُمْ إِيمَانُهُمْ لَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا سُنَّتَ اللَّهِ الَّتِي قَدْ خَلَتْ فِي عِبَادِهِ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكَافِرُونَ .** [1]

ترجمة : اوکله چې دوی زمونږ عذاب وويني نو وبه وايي يوازې په الله مو ايمان راوړی دی او هغه چې مونږ به ورسره شريکان منل په هغه کافران يو خو دوی ته اوس د دوی ايمان فايده نه کوي کله يې چې د الله عذاب وليدو د الله په

---

[1] سورة غافر آية ۸۴:۸۵

بندګانو کې همدا طریقه ده او په هغه ورځ کافران په نقصان کې دي .

امام قرطبي پدې اړه فرمايي : **قال العلماء: وإنما لا ينفع نفساً إيمانها عند طلوع الشمس من مغربها لأنه خلص إلى قلوبهم من الفزع ما تخمد معه كل شهوة من شهوات النفس، وتفتر كل قوة من قوى البدن، فيصير الناس كلهم لإيقانهم بدنو القيامة، في حال من حضره الموت في انقطاع الدواعي إلى أنواع المعاصي عنهم وبطلانها من أبدانهم، فمن تاب في مثل هذه الحال لم تقبل توبته كما لا تقبل توبة من حضره الموت.**

ترجمة : کله چې لمر له لمر لوېده نه را پورته شي نفس ته ایمان څکه فایده نه ورکوي څکه پدې وخت کې به داسې یوه وېره په خلکو راشي چې له زړه نه به هر ډول شهوت له شهوتونو د نفس څخه ورک شي او د بدن هر قوت به سست شي او خلک به ټول پدې متیقن شي چې قیامت راغلو په هغه وخت کې چې یو نفس ته مرګ را شي او د ګناه لور ته د هغه د نفس غوښتنې قطع شي او بدن له ګناه کولو څخه بې وسې شي نو څوک چې پدې وخت کې (د مرګ نه وړاندې د څانکدن په وخت کې) توبه وباسي د هغه توبه نه قبلیږي نو پدې وخت کې چې کله لمر له لمر لوېده څخه را پورته شي هم توبه نه قبلیږي او نه له چا څخه ایمان قبلیږي .

امام ابن کثیر فرمايي :

إذا أنشأ الكافر إيماناً يومئذ لا يقبل منه، فأما من كان مؤمناً قبل ذلك فإن كان مصلحاً في عمله فهو بخير عظيم، وإن كان مخلطاً فأحدث توبة حينئذٍ لم تقبل منه توبة .

ترجمة : کافر که پدې ورځ ایمان راوړي نو نه قبلیږي او هغه چې مخکې لدې حالت نه مؤمن وي که په خپل ایمان کې یې نېک عملونه کړي وي نو

دا ډېر په لوی خير کې دی او که يې ګناهونه کړي وي او اوس له خپلو ګناهونو توبه وباسي نو توبه يې نه قبليږي .

او همدا معنی ددې آيت ده چې لږ وړاندې تېر شو :

**يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لاَ يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا قُلِ انتَظِرُواْ إِنَّا مُنتَظِرُونَ .** [1]

ترجمة : په هغه ورځ چې ځينې نښې د قدرت د رب ستا را ښکاره شي نو نفس ته به د هغه ايمان فايده نه کوي چې مخکې يې ايمان نه وي راوړی او يا يې په ايمان کې نېکي نه وي کړي ته ورته ووايه انتظار وباسئ مونږ هم انتظار وباسو.

رسول الله ﷺ فرمايي : **لا تنقطع الهجرة ما تقبلت التوبة، ولا تزال التوبة مقبولة حتى تطلع الشمس من المغرب، فإذا طلعت طبع على كل قلب بما فيه، وكفى الناس العمل .**

ترجمة : هجرت تر هغه وخته پورې نه بس کيږي ترڅو توبه قبليږي او توبه تر هغه وخته پورې قبليږي ترڅو لمر د مغرب له لوري را ونه خيږي کله چې را وخيږي په کوم زړه کې چې هرڅه وي هماغه به پکې پاتې شي او د خلکو به اوس عملونه بس شي (ددېنه وروسته يو کافر نشي کولی خپل ځان مسلمان کړي او هغه کس چې ګناهونه يې کول اوس نشي کولی خپل ځان نېک کړي او له ګناهونو توبه وباسي) .

په بل ځای کې رسول الله ﷺ فرمايي : **إن الله عز وجل جعل بالمغرب باباً عرضه مسيرة سبعين عاماً للتوبة لا يغلق ما لم تطلع**

---

[1] سورة الانعام آية ١٥٨

الشمس من قبله، وذلك قول الله تبارك وتعالى: يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لاَ يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا)) الآية.

ترجمة : ﷲ په مغرب كې يوه دروازه جوړه كړېده چې سور يې د اويا كالو مسافه ده تر هغه وخته پورې نه بنديږي څو لمر له لمر لوېده څخه را پورته نشي او دا د ﷲ ددې قول معنى ده چې فرمايي : په هغه ورځ چې ستا د رب څه آياتونه راشي نو نفس ته به د هغه ايمان هېڅ فايده نه كوي.

## لمر به له مغرب نه څنګه را پورته كيږي؟

لمر به له عامو شپو څخه يو څه زيات اوږد وخت تېر كړي يعني اوږده شپه به راشي هغه كسان چې په زړونو كې يې يوڅه د هدايت رڼا ور ننوتلې وي هغوى به پوه شي چې دا شپه خطرناكه ده هغوى به سرونه ﷲ ته په سجده ښكته كړي او توبې به وباسي او غافلان خلك به بيا هم ويده وي او دا اوږده شپه به تېره شي او لمر به له مغرب نه را پورته شي يو دم به خلك په چيغو سر شي او ټول خلك به پوه شي چې د توبې دروازه وتړل شوه او په فريادونو به سر شي لمر چې د اسمان نيمايي ته ورسيږي بېرته به لاړ شي او په مغرب كې به غيب شي صبا به بېرته په عادي توګه له مشرق نه را پورته شي تردې چې د څاښت وخت شي او لمر ښه را ګرم شي د همدې ورځې په څاښت كې تر غرمه وړاندې به دابة الارض را ښكاره شي (تفصيل ته يې لږ وروسته ورځو) .

## لمر به څه وخت له لمر لوېده را پورته كيږي؟

هرڅوک چې دا لیکل لولي نو په ذهن کې به ورځي چې دا به څه وخت وي چې لمر د مغرب (لمر لویده) له لوري نه را پورته کیږي؟ ددې پوښتنې ځواب علماوو کړی دی چې الله له مونږ نه ډېر کارونه پټ ساتلي دي او دا هم د الله رحم دی چې د هغې وختونه یې مونږ ته نه دي ښکاره کړي ځکه ډېر داسې کارونه دي چې اوس الله له مونږ نه پټ ساتلي دي او هغه داسې کارونه دي چې که هغه مونږ ته ښکاره شي نو مونږ به له خپل ژوند څخه هیڅ فایده وانشو اخیستلی لکه زمونږ خپل مرګ ، د قیامت خبر او داسې نور ... او کله داسې وي چې که مونږ ته ښکاره شي نو مونږ ته هغه لرې ښکاره شي نو بیا به اکثر خلک په غفلت کې واقع شي د مثال په توګه که دا ښکاره شي چې دری کاله وروسته قیامت دی نو هیڅوک به له خپل ژوند نه خوند وانه اخلي یا د مثال په ډول یو بنده ته ښکاره شي چې دی یو کال پس مړ کیږي نو دا کال به دی له خپل ژوند څخه مزه وانخلي او خپل ساعتونه او خپلې ورځې به شماري او که چیرته یو انسان خبر شي چې قیامت ۲۰۰ کاله وروسته دی یا د یو انسان مرګ ۱۰۰ کاله وروسته دی نو بیا به انسان په غفلت کې راشي او پدې به ډاډه شي چې تر اوسه خو ډېر عمر دی بیا به توبه وباسم نو ځکه الله ځینې نیتې او د ځینې کارونو وختونه له مونږ نه پټ ساتلي دي خو چې یو ځل یو څه قرآن کریم ویلي وي او یا مونږ ته رسول الله ﷺ ویلي وي بیا زمونږ یقین دی چې دا به همداسې کیږي او دا ټول رښتیا دي .

## دابــة الارض

د قیامت بله نښه داده چې وروسته له هغه وخته چې لمر له لمر لویده (مغرب) نه را پورته شي دا ورځ به تېره شي صباء به لمر په عادي توګه د مشرق نه را پورته شي چې د غرمې وخت ته

نېږدي شي يو حيوان به را پيدا شي ترڅو د خلکو په مخونو باندې نښې وکوي او هغه مخونه چې له لمر لوېده نه د لمر راختلو څخه وړاندې کافر وو او هغه چې مسلمان وو دواړه سره بېل کړي او داسې يو حيوان به وي چې نه يې څوک را ګير کولی شي او نه ورڅخه څوک تښتېدلی شي د خلکو مخونو ته به صرف اشاره کوي بيا چې په چا کې څومره ښه ايمان وي مخ به يې همدومره رڼا کوي او څوک چې غافل وي د هغه د مخ رڼا به کمه وي او هغه چې کافر وي نو مخ به يې تور وي بيا چې خلک په بازار کې يو بل ويني نو اواز به ورته کوي اې مؤمنه اې کافره ... ځکه د دوی مخونه به له ورايه ښکاره کيږي او د دوی مخونه به ښکاره کوې چې دا کس مؤمن او که کافر دی او که مؤمن دی نو څه ډول مؤمن دی ددې دابې ذکر په قرآن کريم کې راغلی دی الله فرمايي : **وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَابَّةً مِنْ الأَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ أَنَّ النَّاسَ كَانُوا بِآيَاتِنَا لاَ يُوقِنُونَ** .[1]

ترجمة : او کله چې قول (د عذاب) په دوی واقع شي مونږ به دوی ته يو حيوان له زمکې نه را وباسو چې له دوی سره به خبرې کوي چې بېشکه خلکو زمونږ په آياتونو (څرنګه چې مناسبه وه داسې) يقين نه کاوه .

ددې آيت په تفسير کې علماء کرام فرمايي : **وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ** معنی دا چې کله په دوی باندې غضب واجب شي چې لمر وربانديې له لمر لوېده څخه را پورته شي ترڅو د اسمان نيمي ته را ورسيږي او بېرته مغرب لوري ته لاړشي دا د قيامت له لويو نښو څخه يوه ده .

[1] **سورة النمل آية ٨٢**

**أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَابَّةً** نو بيا به مونږ دوى ته يوه دابه را وباسو پدې اړه يو حديث دى چې حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص يې روايت كړى دى هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إِنَّ أَوَّلَ الآيَاتِ خُرُوجًا، طُلُوعُ الشَّمْسِ مِنْ مَغْرِبِهَا، وَخُرُوجُ الدَّابَّةِ عَلَى النَّاسِ ضُحًى، وَأَيُّهُمَا كَانَتْ قَبْلَ صَاحِبَتِهَا فَالأخْرَى عَلَى إِثْرِهَا قَرِيبًا .** [1]

ترجمة : بېشه اوله نښه (چې د توبې دروازه ورسره بنديږي) په راوتلو كې د لمر را ختل دي له مغرب نه او د څاښت په وخت كې د دابې راوتل دي او پدې دواړو كې چې هره يوه مخكې شي نو بله به ورپسې وي .

**دَابَّةً مِنْ الأرْضِ تُكَلِّمُهُمْ** يعني يو حيوان چې ورسره خبرې به كوي دا حيوان د قيامت له لويو نښو څخه ده داسې يوه نښه ده چې دلته بايد د اجتهاد كونكو اجتهادونه ودريږي او پدې ځاى كې ټول مفسرين دريږي چې كله يې دا صفات آوري چې د زمكې نه را بهر كيږي ، نه يې څوک را ګېر كولى شي او نه څوک ترېنه تښتېدلى شي د خلكو په مخونو به هغه نښې ولګوي چې د خلكو په زړونو كې وي كه ايمان وي او كه كفر وي تردې وړاندې په زړه كې پټ وو خو لدې وروسته به يې دا د خلكو په مخونو باندې ښكاره كړي او په مؤمنانو كې به د دوى د ايمان درجه ښكاره كړي او دا ټول به هغه درجې وي چې له مغرب نه د لمر له ختلو وړاندې يو انسان څنګه وو .

حضرت عبد الله بن عباس ددې آيت په تفسير كې فرمايي چې الله **تَكلِمُهُم** يعني دوى به زخمي كوي يعني نښه به وربانديې كوي د مؤمن په مخ به

[1] رواه مسلم

د ايمان او د كافر په مخ به د كفر نښه كوي .[1]

امام ابن كثير فرمايي : **هذه الدابة تخرج في آخر الزمان عند فساد الناس وتركهم أوامر الله وتبديلهم الدين الحق، يخرج الله لهم دابة من الأرض فتكلم الناس على ذلك.**[2]

ترجمة : دا دابه راوزي په آخره زمانه كې كله چې خلک فاسد شي او د الله امرونه پريږدي او حق دين په باطل باندې بدل كړي الله به ورته دا دابة را بهر كړي او دا به له خلكو سره پدې اړه (د حق دين د پرېښودو په اړه) خبرې كوي .

[1] تفسير القرطبي
[2] **تفسير ابن كثير**

## دا دابه څه شی ده؟

پدې ځای کې ځینې علماء فرمايي : کله چې د صالح قوم د حضرت صالح په معجزه اوښه پسې را ووتل هغه يې مړه کړه نو د هغې بچی له خلکو و تښتېدو او په يوه تيږه ننوتلو هغه به د قيامت نه وړاندې بېرته را بهر شي او د صفا نه به په مکه مکرمه کې د ټولو خلکو په وړاندې را بهر شي .

دوهمه رايه داده چې مخکې د دجال په بحث کې د حضرت تميم الداري په حديث کې يوه خبره تېره شوه چې کله هغوی جزيرې ته ورغلل په کومه کې چې دجال وو هلته يې يوه ښځه وليده چې جاسوسه وه او بيا هغه د ښځې قواره د سړي قواره شوه د دوی په وړاندې او دوی ورڅخه سخت ډار شوي هم وو دا دابه هغه جاسوسه ده او ددې قول نسبت په ځينې ځايونو کې حضرت عبد الله بن عمر ته شوی دی **و الله اعلم**

دريمه رايه داده چې دا هغه مار دی چې کله قريشو کعبه جوړوله نو دايې هلته ليدلی وو او دا قول امام قرطبي حضرت عبد الله بن عباس ته منسوب کړی دی .

څلورمه رايه داده چې دا دابة لکه يو انسان داسې شی دی د کفارو او اهل البدعة سره به مناظرې کوي او له هغوی سره به بحث کوي نو هغه چې ملامت شي په بحث کې پاتې راشي او ملامت وي نو هغه به بېل ښکاره کيږي او هغه چې مؤمنان وي نو هغه به بېل ښکاره کيږي دا رايه امام قرطبي هم ذکر کړېده او بيا يې وربانديې رد کړی دی چې که دا دابة يو مناظر انسان وي نو بيا خو څه عجيبه دابة او خارق العادة شی نه

شول او په احاديثو کې ددې بل ډول خاص صفات راغلي دي .

## د دابة الارض صفات

ځینې خلکو ددې لپاره عجیب صفات بیان کړي دي وایي چې دا به داسې یو حیوان وي چې د مختلفو حیواناتو صفات به پکې وي سر به یې د غوایه وي ، سترګې به یې د خنزیر وي ، غوږونه به یې د فیل وي ، یو ښکر به لري ، غاړه به یې د نعامه مارغه وي ، سینه به یې د زمري وي ، رنګ به یې د پړانګ وي ، لکۍ به یې د ګډ وي ، پښې به یې د اوښ وي او ډېر لوی حیوان به وي .

دا دابة الارض به په تللو کې ډېره تیزه وي ددې امله خو یې په احادیثو کې ذکر راغلی دی چې نه به یې څوک را ګیر کولی شي او نه به څوک ترېنه په منډه تښتېدلی شي .

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **تخرج دابة الأرض، ومعها عصا موسى وخاتم سليمان، عليهما السلام، فتخطم أنف الكافر بالعصا، وتُجلي وجه المؤمن بالخاتم، حتى يجتمع الناس على الخوان يعرف المؤمن من الكافر.** [1]

ترجمة : دابة الارض به را وزي او د هغې سره به د موسی همسا او د سلیمان ګوتمه وي د کافر پوزه به په همسا باندې په نښه کوي او د مؤمن مخ به په ګوتمه سره رڼا کوي تردې چې داسې به ټول خلک ښکاره شي چې خلک به په یوه دسترخوان را ټولیږي نو مؤمن او کافر به سر پکې پېژندل کیږي .

## دابه له کومه ځایه راوزي؟

پدې اړه اول قول دادی چې دا به له مکې مکرمې څخه له لوی جومات څخه راوزي او ددې قول تائید

[1] رواه الامام احمد

هغه روایت کوي چې امام طبراني په الاوسط کې له حضرت حذیفة بن اسید څخه کړی دی هغه فرمايي : **تخرج الدابة من أعظم المساجد، فبينا هم إذ دبت الأرض، فبينا هم كذلك إذ تصدعت** (راوزي دابة له لوی جومات څخه کله چی خلک په جومات کې وي زمکه به و دربیږي په همدې حالت کې به دا را پورته شي) .

دوهم قول دادی چې دا به دری ځله را ښکاره شي یو ځل په دښته کې بېرته به پټه شي بل ځل په ځینې کلیو کې بېرته به پټه شي بل ځل به په المسجد الحرام کې را ښکاره شي پدې اړه یو حدیث هم شته رسول الله ﷺ فرمايي : **لها ثلاث خرجات فمرة تخرج في بعض البوادي ثم تختفي ومرة تخرج في بعض القرى ثم تظهر في المسجد الحرام.** [1]

ترجمة : ددې لپاره دری ځله راوتل دي یو ځل به په دښتو کې را ښکاره شي او پېرته به پټه شي او یو ځل به په ځینې کلیو کې را ښکاره شي بیا به په المسجد الحرام کې را ښکاره شي .

[1] رواه الحاكم فى المستدرك

# لوګی

د قیامت بله نښه د یو ډول لوګي را پورته کېدل دي په اصل کې خو لوګی هغه وي کله چې انسان اور بل کړي ورسره پورته کیږي خو دا لوګی چې د قیامت نښه ده دا لوګی به د اور لوګی نه وي او همداسې به را پورته کیږي او په دنیا کې به خپریږي پدې اړه دلائلو ته ستاسې فام را ګرځوم .

## د لوګي په را پورته کېدلو دلائل

په قرآن کریم کې هم ددې لوګي ذکر شوی دی الله په سورة الدخان کې فرمایي : فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ - يَغْشَى النَّاسَ هَذَا عَذَابٌ أَلِيمٌ - رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ إِنَّا مُؤْمِنُونَ - أَنَّى لَهُمُ الذِّكْرَى وَقَدْ جَاءَهُمْ رَسُولٌ مُبِينٌ .[1]

ترجمة : پس د هغه ورځې انتظار کوه چې اسمان ښکاره لوګی راوړي هغه خلک ونیسي او دا عذاب دردناک دی (خلک به ووایي) اې ربه دا عذاب له مونږ نه لرې کړه مونږ مؤمنان یو هغوی چېرته پند اخلي په تحقیق سره هغوی ته راغلی دی رسول په ښکاره بیانونکی .

حضرت حذیفه بن اسید الغفاري فرمایي : طلع علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم ونحن نتذاكر الساعة فقال: " ما تذاكرون "؟ قلنا: نذكر الساعة، قال: " إنها لن تقوم حتى تروا قبلها عشر آيات فذكر الدخان والدجال والدابة. . . الحديث .[2]

ترجمة : رسول الله ﷺ مونږ ته را ووتلو مونږ د قیامت په اړه خبرې کولې رسول الله ﷺ وفرمایل :

[1] سورة الدخان آية ١٠:١٣
[2] رواه أحمد والترمذي وهو صحيح

د څه خبرې کوئ؟ مونږ ورته وويل : د قيامت خبرې کوو رسول الله ﷺ وفرمايل : قيامت تر هغه وخته نه راځي ترڅو تاسې مخکې ترېنه لس نښې ونه وينئ په هغه نښو کې يې لوګی ياد کړو ، دجال يې ياد کړو ، دابة يې ياده کړه ..

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :
بادروا بالأعمال ستا: طلوع الشمس من مغربها أو الدخان أو الدجال. . . الحديث .[1]

ترجمة : خپل اعمال له شپږو شيانو مخکې کړئ لمر چې له مغرب (لمر لوېده) نه را پورته کيږي او يا لوګی او يا دجال ....

## د لوګي په اړه د علماوو اختلاف

ددې په اړه د علماوو د رايو اختلافات موجود دي چې څنګه به را پورته کيږي او څه وخت به را پورته کيږي د حضرت عبد الله بن مسعود رايه داوه چې دا وخت تېر شوی دی هغه وخت چې رسول الله ﷺ د قريشو د ډېر بد عکس العمل سره مخامخ شو او هغوی د رسول الله ﷺ د منلو څخه سخت انکار کاوه نو هغه وخت په مکه کې قحطي راغله او داسې يو حالت راغلو چې چا به اسمان ته کتل لوګی به ورته ښکاره کېدو د حضرت عبد الله بن مسعود په رايه دا هغه لوګی دی چې د قيامت له نښو څخه شمارل شوی دی او بله رايه داده چې دا نښه تراوسه نه ده واقع شوې او دا لوګی به تر قيامت لږ وړاندې را ښکاره کيږي دا رايه د حضرت عبد الله ابن عباس او څه نورو صحابه وو او تابعينو ده امام طبري او ابن ابي حاتم له حضرت عبد الله بن ابي مليكة څخه روايت کړی دی

---

[1] رواه مسلم

هغه فرمايي يو ځل زه عبد الله بن عباس ته ورغلم هغه مبارک وفرمايل : **ما نمت الليلة حتى أصبحت. قلت: لم ؟ قال : قالوا: طلع الكوكب ذو الذنب، فخشيت أن يكون الدخان قد طرق ، فما نمت حتى أصبحت.**

ترجمة : زه د شپې نه يم ويده شوى تر صبا پورې .. ما ورته ويل ولې؟ ده وويل : خلکو وويل چې يو ستورى را ختلى دى لکۍ لري زه وډا رشوم ما وېل که لوګى به راوتلى وي نو تر صبا پورې خوب را نغلو .

امام ابن کثير فرمايي : عبد الله بن عباس چې حبر الامة دى د هغه په نظر دا لوګى را پورته کېدل په راتلونکي وخت کې تر قيامت لږ وړاندې را روان دي او قرآن کريم په ښکاره سره همدا وايي ځکه هلته الله فرمايي دخان مبين معنى دا چې هرچا ته به ښه ښکاره کيږي واضح به وي او هغه معنى چې حضرت عبد الله بن مسعود ورځخه اخيستى ده هغه خو صرف يو خيالي لوګى ډول وو چې په دوى داسې يو حالت د لوږې راغلى وو چې هوا ته به يې کتل هوا به ورته د لوګي نه ډکه ښکاره کېده او بل الله فرمايي **يَغْشَى النَّاسَ** ټول خلک يې ياد کړي دي او که چېرته ددې ځخه مراد هغه لوګى واى چې کوم د مکې مشرکينو ته ښکاره کېدو نو ټول خلک به يې پکې نه يادول .[1]

ځينې علماوو د حضرت عبد الله بن مسعود او حضرت عبد الله بن عباس په مينځ کې جمع کړېده او لوګى يې دوه نښې کړي دي يوه هغه چې تېره شوېده چې کومه حضرت عبد الله بن مسعود يادده کړېده او يوه هغه ده چې وروسته به راځي چې کومه حضرت عبد الله بن عباس يادده کړېده امام قرطبي فرمايي امام مجاهد فرمايي حضرت عبد

---

[1] تفسير ابن کثير

الله بن مسعود به هم فرمایل چې دا دوه لوګي دي یو یې تېر شوی دی او یو به یې وروسته راځي چې د زمکي او اسمان مینځ به ډکوي د مسلمان لپاره به لکه یو زکام داسې وي او د کفارو به پکې نفس نیول کیږي .

او پدې مقام کې امام نووي د مسلم په شرح کې فرمایي : دا حدیث د هغه کسانو د خبرې تائید کوي چې هغوی فرمایي دا لوګی به د کفارو نفسونه ونیسي او د مسلمان لپاره به لکه یو زکام داسې وي او دا چې دا لوګی تر اوسه پورې راغلی نه دی او دا به تر قیامت لږ وړاندې راځي او حضرت عبد الله بن مسعود فرمایي دا د هغه لوګي نه عبارت دی چې قریشو د قحطي له امله د زمکې او اسمان په مینځ کې لیدلو لکه لوګی داسې یو کیفیت او حالت وو او د حضرت عبد الله بن مسعود هم پدې خبره کې د یوې ډلې صحابه وو سره موافقت کړی دی او دا بله رایه چې دا به تر قیامت وړاندې راځي ابن عمر ، حضرت حذیفة را نقل کړی دی او دا یې ویلي دي چې دا لوګی به په زمکه کې تر څلوېښتو ورځو پورې وي نو احتمال یې شته چې دا به دوه لوګي وي یو به هغه وي چې په مکه کې تېر شوی دی او بل به تر قیامت وړاندې را پورته کیږي او ټوله دنیا به نیسي .

هغه علماء او صحابه چې ددې قائل دي چې دا لوګی به تر قیامت وړاندې راځي هغوی پدې دلیل نیسي چې دا رسول الله ﷺ د قیامت په هغه لویو نښو کې شمار کړی دی چې هغه تر اوسه نه دي واقع شوې او دا چې په ټوله دنیا باندې به دا لوګی خپور وي او د مسلمان لپاره به اسان او د کفارو لپاره به یې برداشت سخت وي دا خبرې په هغه لوګي کې نه وي چې قریشو ته د قحط په ورځو کې ښکاره کېدو .

# د دې لـوګـي صفـت

دا بـه داسې لـوګـى وي چې د کـوم شي د سوزېدلـو
څخه بـه نـه وي را پـيدا شوى ، نـه بـه د پـټرولـو
او نـه بـه د بل څـه د سوزېدلـو نـتيجه وي او نـه
بـه د آتـش فـشان غرونـو څخه را بـهر کـيږي پـه ځيـنې
ځايـونـو کې يـې صفـت شوى دى چې دا لـوګـى د جهنم
آسويـلـى دى او د هغـه لـوګـى دى تـر څـلوېـښت ورځـو
پـورې بـه يـې ټـولـه زمـکه نـيولـې وي لـدې لـوګـي نـه
بـه مسلـمان تـه د زکـام بـيمـاري لـګـيږي او د کفـارو
لـپاره بـه يـې بـرداشت ډېـر سخت وي د هغـوى نـفـس بـه
ورسره تـنګـيږي او هغـوى بـه دا فـکر کـوي چې دوى
اوس مـړه کـيږي او تـنفـس بـه پـه سختـي سره کـوي ځکـه
خـو ﷲ فـرمـايـي چې کـلـه دا لـوګـى راشي نـو **يَغْشَى النَّاسَ هَذَا عَذَابٌ أَلِيمٌ** (دا بـه ټـول خلک نـيسي او دا
عذاب دردنـاک دى)

## الخسوفات الثلاثة

د قيامت بله نښه داده چې درى لوى خسفونه (په زمكه ننوتل) به واقع شي پدې اړه څو ځله د حضرت حذيفة بن اسيد حديث تېر شو چې رسول الله ﷺ فرمايلي وو قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي ترڅو لس نښې مخكې واقع نشي په هغه لسو كې يې درى دا يادې كړې وي چې يو خسف به په مشرق كې وي يو به په مغرب او بل به په جزيره عرب كې وي .

## د خسفونو (په زمكه د ننوتلو) دليلونه

حضرت عايشه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **يكون في آخر هذه الآمة خسف ومسخ وقذف، قالت: قلت يا رسول الله: أنهلك وفينا الصالحون ؟ قال: نعم إذا ظهر الخبث .** [1]

ترجمة : ددې امت په آخر كې به خسف مسخ قذف وي دا مباركه فرمايي ما وويل : يا رسول الله ﷺ مونږ به هلاكېږو سره ددې چې په مونږ كې به نېكان وي؟ رسول الله ﷺ وويل هو كله چې ګندګي زياته شي .

د حضرت ام سلمة حديث دى هغه فرمايي : ما له رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې هغه فرمايل : **سيكون بعدي خسف بالمشرق وخسف بالمغرب وخسف في جزيرة العرب "،**

---

[1] رواه الترمذي

قلت: يا رسول الله أيخسف بالأرض وفيها الصالحون؟ قال لها رسول الله صلى الله عليه وسلم: " إذا أكثر أهلها الخبث . [1]

ترجمة : زما نه وروسته به درى خسفونه واقع شي يو خسف به په مشرق کې وي يو خسف به په مغرب کې وي او يو خسف به په جزيره عرب کې وي ما ورته وويل : يا رسول الله ﷺ په زمکه کې به خسف کيږي پداسې حال کې چې نيکان به په زمکه کې وي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : هو چې په دنيا کې خلک خبث زيات کړي .

امام ابن حجر فرمايي : داسې خسف کې په متعددو ځايونو کې واقع شوى دى خو کېداى شي په حديث کې به د خسوف الثلاثة نه مراد څه زياته اندازه وي . [2]

## دا خسوف (په زمکه ننوتل) به چېرته وي؟

خسفونه هر چېرته واقع کېدلى شي لکن هغه چې رسول الله ﷺ يې مونږ ته په اړه ويلي دي کوم چې د قيامت نښه ده هغه رسول الله ﷺ بيان کړي دي چې په دريو ځايونو کې به وي يو به د مشرق په لوري کې وي يعني د مدينې منورې نه د شرق لوري ته او ضرور نه ده چې د مدينې منورې شرق لوري ته چې څومره دنيا ده دا د ټوله په زمکه ننوزي بلکه په مشرق طرف کې به په يوځاى کې وشي او بل به په جزيره عرب کې وي همدارنګه پدې کې هم ضروري نه ده چې ټوله جزيره عرب د په زمکه ننوزي او په جزيره عرب کې به د يو روايت له

[1] رواه الطبراني في المعجم الوسيط
[2] فتح الباري

مخې په قبائلو باندې راځي رسول الله ﷺ فرمايي : لا تقوم الساعة حتى يخسف بقبائل فيقال من بقي من بني فلان .[1]

ترجمة : قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي تردې چې څه قبائلو باندې خسف راشي بيا به ويل کيږي د فلاني خيلو نه څوک پاتې دي؟ .

او د خسف دريم ځای د غرب لوري ته دی يعني دريم خسف به د مدينې منورې په غرب طرف کې واقع کيږي او پدې کې هم لکه د مخکې په شان معنی دا نه ده چې د مدينې منورې غرب لوری به مکمل په زمکه ننوزي بلکه په يوه ساحه کې به د غرب په لوري کې واقع شي .

## اور چې له يمن به را پورته کيږي

د قيامت په نښوکې آخري نښه به يو اور وي چې په يمن کې به را ښکاره شي په خلکو پسې به وي ترڅو ټول خلک د محشر لوري ته ور غونډ کړي او علماء کرام فرمايي چې د قيامت په نښو کې دا آخري نښه ده او لدې وروسته به قيامت قائميږي او دا نښه ډيره سخته ده او خلکو ته به لدې نه ډير زيات تکليف وي د کتاب په سر کې يو حديث تېر شوی وو چې هلته رسول اللهﷺ د قيامت لپاره لس نښې يادې کړې وي او په هغه حديث کې يې دا هم ويلي وو وَآخِرُ ذَلِكَ نَارٌ تَخْرُجُ مِنْ الْيَمَنِ تَطْرُدُ النَّاسَ إِلَى مَحْشَرِهِمْ .[2]

ترجمة : او ددې په آخر کې به يو اور وي چې له يمن څخه به را پورته شي او خلک به محشر ته ور ټول کړي

[1] رواه الامام احمد
[2] رواه الامام احمد

# دا اور له کومه ځایه را پورته کیږي؟

لکه مخکې چې تېر شول د احادیثو له مخې دا به په یمن کې را پورته کیږي په یو حدیث کې رسول الله ﷺ فرمایل : **ستخرج نار من بحر حضرموت ، قبل یوم القیامة ، تحشر الناس .** [1]

ترجمة : دا اور به د حضرموت له بحر څخه تر قیامت وړاندې را بهر شي خلک به را ټول کړي .

# محشرت ته ټولېدل

دا خلک به محشر ته په څه ډول ځي؟ رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې خلک به په درې ډوله وي یو ډول به هغه خلک وي چې هغوی ډېر نیکان وو هغوی به په ښه حالت کې روان وي په سپرلیو به وي په هغوی پسې به بله ډله خلک په پښو روان وي منډې به وهي هغوی ته به تکلیف زیات وي او بله ډله خو به داسې وي چې ملا ئکې به یې کش کوي رسول الله ﷺ فرمایي :

**أن الناس یحشرون على ثلاثة أفواج فوجٍ راكبین طاعمین كاسین ، وفوجٍ یمشون ویسعون ، وفوجٍ تسحبهم الملائكة على وجوههم وتحشرهم إلى النار.** [2]

ترجمة : بېشکه خلک به جمع کیږي په دریو فوځونو کې یو فوځ به داسې وي چې په سپرلیو به وي خوراک به یې هم کړی وي او په جامه به هم پټ وي ، بل فوځ به داسې وي چې هغوی به په پښو روان وي او منډې به وهي او بل فوځ به داسې وي

1 سنن الترمذي
2 **رواه الامام احمد**

چې هغوی به ملائک کش کوي په مخونو د دوی سره او اور ته به یې ور ټولوي .

پدې حدیث کې هم د هغه وخت یو تصویر ښکاره کړل شوی دی چې مسلمانان به په راحت کې وي او کفار به په تکلیف کوي نېک مسلمانان به د لارې تکلیف هم نه محسوس کوي په سپرلیو باندې به وي او نور به هم عزت ورکړل شوی وي چې وږي او لوڅ به هم نه وي .



# ماخذونه


1. القرآن الكريم
2. البرهان في علوم القرآن
3. الإتقان في علوم القرآن
4. تفسير القرطبي
5. تفسير ابن كثير
6. تفسير الطبري
7. تفسير المنار
8. صحيح البخاري
9. صحيح مسلم
10. سنن الترمذي
11. سنن النسائي
12. سنن أبي داود
13. سنن ابن ماجه
14. سنن الدارمي
15. سنن الدارقطني
16. شرح النووي على مسلم
17. فتح الباري شرح صحيح البخاري
18. حاشية السندي على ابن ماجه

19. عون المعبود
20. تحفة الأحوذي
21. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح
22. السيرة النبوية (ابن هشام)
23. كتاب الشفا بتعريف حقوق المصطفى
24. زاد المعاد
25. البداية والنهاية
26. جامع العلوم والحكم
27. سير أعلام النبلاء
28. بداية المجتهد ونهاية المقتصد
29. بيان المختصر شرح مختصر ابن الحاجب
30. بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع
31. تحفة المحتاج في شرح المنهاج
32. جمع الوسائل في شرح الشمائل
33. رد المحتار على الدر المختار
34. حلية الأولياء وطبقات الأصفياء
35. فتح القدير
36. البحر الرائق شرح كنز الدقائق
37. الأشباه والنظائر على مذاهب أبي حنيفة النعمان

38. القواعد النورانية الفقهية

39. أنوار البروق في أنواع الفروق

40. مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين

41. الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي

42. موعظة المؤمنين من إحياء علوم الدين

43. القاموس المحيط

44. لسان العرب

45. النهاية في غريب الحديث والأثر

46. مختار الصحاح

47. الحاوي للفتاوي

## د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد د نبوت معجزې
پښتو
2. ږنګه ځاله
پښتو
3. آشيانه سوخته
فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګليسي

5. دین یې دام دی ددنیا په لار کې اېښی
پښتو
6. فرار از گزار
فارسي
7. له گزاره تېښته
پښتو
8. زوړ دین نوی مسلمان
پښتو
9. ډم ډمگو جي او لیکوال
پښتو
10. ادیان پشت در
فارسي
11. له دروازې تر شا دینونه
پښتو
12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو
13. کفري الفاظ
پښتو
14. گل بچه فارسي
15. معلومات عمومي
فارسي
16. د حج لارښود پښتو
او انگلیسي

17. محمد رسول الله ﷺ سيرت اخلاق او پېژندنه
پښتو
18. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه اول
پښتو
19. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه دوهم
پښتو
20. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه دريم
پښتو
21. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه څلرم
پښتو
22. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه پنځم
پښتو
23. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه شپږم
پښتو
24. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه اوم
پښتو
25. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه آتم
پښتو
26. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه نهم
پښتو
27. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه لسم
پښتو

28. د فقهي کتابونو له پانو ځخه اول
پښتو
29. د فقهي کتابونو له پانو ځخه دوهم
پښتو
30. د فقهي کتابونو له پانو ځخه دريم
پښتو
31. د فقهي کتابونو له پانو ځخه څلورم
پښتو
32. د فقهي کتابونو له پانو ځخه پنځم
پښتو
33. د علم حديث مطالعه پښتو
او انګليسي
34. د فقهي کتابونو له پانو ځخه شپږم
پښتو
35. کلمه طيبة
پښتو
36. الدعاء
پښتو
37. اللهم عربي، پښتو،
انګلسي
38. المسجد پښتو
39. قرآني معلومات لمړی برخه
پښتو

54. حتمي سفر (قبر)
پښتو
55. حتمي سفر (د قيامت وړې نښې)
پښتو
56. حتمي سفر (د قيامت لوې نښې)
ستاسې په لاس کې

